۹/۷۱ علمی

۱۳۵۰/۸ ۱۳۵۰ (۶





# ننګرهار



زموږ محبوب ټولواک همایونی معظم
اعلیحضرت د هیواد د خپلواکی ستر حامی چی
د شاهانه ذات تر قیادت لاندی د ژوند په ټولو
مادی او معنوی برخو کی د ګران افغانستان
لوی انکشاف په برخه سوی او اوس هم
زموږ هیواد د لوړتیا پر خوا
چټک ګامونه اخلی



اعلیحضرت شهید سعید محمد نادر شاه غازی
د خپلواکی د بیرته اخیستلو د معرکی
ستر قهرمان او د هیواد ناجی

# د کندهار مجله


د امتیاز خاوند: د طلوع افغان نشراتي مؤسسه

د مسؤل مدیر وکیل: غلام محی الدین (ایوبی)

کندهار

میاشتنۍ خپرونه

ادبی، تاریخی، اجتماعی، علمی

اداره: د شهیدانو واټ

د تأسیس کال ۱۳۳۹

د دولسم کال شپږمه گڼه

پر له پسې گڼه ۱۳۲

کالنی بیه

په کندهار کی [۲۸] افغانی

د هیواد په داخل کی [۳۲] د

په دباندنیو هیوادو کی یو ډالر

د وږی میاشت

۱۳۵۰ لمریز کال


## ددې گڼې مضامین

# زموږ د خپلواکۍ تلین

انسان خپلواک پیدا شوی او دا حق لري چې خپلواک واوسي او د خپل دغه حق څخه د ځان، کورنۍ، او ټولنې د پرمختګ، نیکمرغۍ او ښه ژوند په لار کښې کار واخلي او په خپل هیواد کښې د خپلواکۍ او ملي ژوند څخه مستفید شي.

لکه څرنګه چې د خپلواکۍ ګټه د قربانۍ او وینې تویولو په بدل کښې لاس ته راغلې او غیرتمنو ولسونو خپل دغه ستر نعمت د ځوانانو د برچې په څوکه او د مړوند په زور خپل کړی او ځانونه ئې تل ترتله خپلواک ګرځولي دي دغه رنګه د ملي خپلواکۍ ساتنه هم میړانه، فداکاري، پوهه او هوښیاري غواړي.

په اوسني منور او د کار او فعالیت په عصر کښې هغه کامونه او ولسونه د خپلواکۍ او ملي ژوند څخه ګټه اخستلای او د نیکمرغۍ ژوند سرته رسولای شي چې د یوې خوا یې په خلکو کښې پوهه او درایت پیدا شي، علمي او معنوي سویه ئې لوړه شي، ناپوهي او بې سوادي ئې د ټولنې څخه کوچ وکړي او د بلې خوائې خلک کار او فعالیت ته ملا وتړي او په ډېر ډول ځانونه د نورو د اړتیا څخه وساتي او خپل فردي او ملي اقتصادیات پرپښو ودروي.

موږ افغانان چې د نیکه مرغه اوس د خپلواکو ملتونو په قطار کښې ځای لرو، د خپلواکۍ مینه زموږ په خټه کښې اخښل شوې او زموږ ننګیالیو پلرونو او توریالیو نیکونو دغه ستر خوی په میراث را ته پرې ایښی او دغه

خپلواک هیواد ئې د یوه ستر امانت په حیث موږ ته سپارلی او په کار دی چې موږ د خپلو زړورو پلرونو بهترینو زامنو په صفت دغه ستر امانت او د ژوند لوړ نعمت وساتو او د هغه د خوندي کولو په لار کښې د هیڅ ډول فعالیت کار، تکلیف، فداکارۍ او صداقت څخه ډډه و نه کړو.

د خپلواکۍ د تلین نمانځنه د دې لپاره نه ده چې موږ یوازې خوشحالي وکړو بلکه دا د هغه ستر ویاړ او ملي غرور یادونه ده کوم چې زموږ ننګیالیو پلرونو د فداکارۍ او سربښندنې په برکت ترلاسه شوی او د هغه په ښه توګه ساتنه او راتلونکي نسل ته سپارنه هم دغسې ویاړ زموږ په برخه کوي.

که پخوا خپلواکي د میړانې، غیرت او سربښندنو په زور خپلیدله خو اوس دا کار د پوهنې، روزنې، عصري کمالاتو ساینس او تخنیک په برکت خوندي او خپلواک ژوند څخه ګټه اخستل کیږي نو اوس موږ ته په کار دي چې د اوسني عصر د ایجاباتو او مقتضیاتو سره سم ملي ژوند ته دوام ورکړو خپل اجتماعي او ملي چارې په ښه توګه سمبالې کړو او خپل هیواد په اقتصادي او علمي لحاظ پرمخ بوزو.

نن د خپلواکۍ ساتنه او د دغه ستر ملي ویاړ خوندي کول دا غواړي چې موږ ټول د مرفه او مترقي ژوند خاوندان شو، له هیواد څخه لوږه، رنځ، یو پر بل ظلم کول، اقتصادي نیمګړتیاوې، بې سوادي، ناپوهي او دا ډول نور اجتماعي مفاسد د منځه لیرې کړو.

هو موږ د هغو غیرتمنو افغانانو اولادیو چې خپلواکي ئې را ګټلې او ساتلې او هغو په خپل عصر کښې د میړانې او غیرت لوړ نوم وړی ؤ نو موږ هم د خپلو ننګیالیو پلرونو پر پل ګام ږدو او غواړو چې د اوسني عصر د ایجاباتو له مخه خپل ملي حاکمیت د علم،

(نور په ۲۹ مخ کښې)

ایو بزی: د پښتونستان د ورځې له کبله:

# د پښتونستان آزادي

پښتونستان د اتو ملیونو پښتنو او بلوڅانو آبائي هیواد او د پلرونو او نیکونو مسکن دی، پښتونستانیان پدغه خاوره کښې د پېړیو پېړیو راهیسې اوسي او ځانته جلا کلتور، نژاد، عنعنات، تاریخ او نور ملي ممیزات لري.

څه د پاسه سل کاله دمخه چې برتانوي استعمار د هند پر لویه قاره تسلط درلود د پښتونستان خاوره ئې د افغانستان څخه بېله کړې او پر هغه ئې هم د برچې په څوکه حکمراني کوله او هر کله چې برتانوي استعمار دغه لوی هیواد خوشې کاوه نو هغه ئې د پاکستان او هند په هیوادونو ووېشی او د پښتنو او بلوڅو سرنوشت ئې پرته د دغه ولس د اکثریت د فیصلې څخه پاکستان ته وسپاره.

د پښتونستان ولس د مخه تاریخ راهیسې بیا د خپلواکۍ په مجادلو لاس پورې کړی او ملي مشرانو او مجاهدینو ئې پدغه لار کښې ستري فداکارۍ کړي او د خپلواکۍ ملي نهضت ئې تر اوسه پورې جاري ساتلی دی.

خپلواکي د هر قوم مشروع بشري او بین المللي حق دی او د ولسونو دا د خپلې ازادۍ حق ټولو نړیوالو منلی او هیڅوک او هیڅ طاقت نشي کولای چې د ملتونو دا حق په زور تر ډېرې مودې پورې غصب کړای شي.

پښتونستان خپل تاریخ، جغرافیائي موقعیت او بېل قومیت او ملیت لري، د پاکستان د نورو ملتونو سره نه ګډېږي او هیڅکله نه غواړي چې ځان په نورو قومونو کښې منحل او د تل د پاره د منځه یوسي.

افغانستان یو آزاد او سوله غوښتونکی هیواد او د ملتونو د آزادۍ پرخوا دی او په تېره بیا کوښش کوي چې د پښتونستان په وینه، تاریخ، ادب، کلتور او ملیت شریک ورور ئې د خپلواکۍ د ملي او بشري حق څخه ګټه واخلي او بخپله خوښه او سلا خپل ملي ژوند وکړي او خپل سرنوشت د آزاد قضاوت د لارې فیصله کړي.

د پښتونستانو محکومول او هغه تر ډېره پورې پاسارت کښې ساتل هیڅ امکان نه لري، همدغه سبب دی چې ئې پدغه ولس کښې د خپلواکۍ جذبه پاربدلی او سیاسي شعور ئې بیدار شوی او په هیڅ توګه دا نه مني چې د خپلې ازادۍ ملي حق ئې تلف او د منځه ولاړ شي.

دا چې څو کاله دمخه د پښتونستانو یو زیات شمېر ملي مشرانو او مجاهدینو په کابل کښې غونډه کړې او تر سلا او مشورې وروسته ئې د آزادۍ د حاصلولو دپاره ملي تړون او هوډ وکړه دادی د هغې نېټې راهیسې دغه ورځ د پښتونستان د ورځې په نامه هر کال نمانځل کېږي.

پښتونستان یو حقیقت دی د دغه حقیقت څخه سترګې پټول د غاصبانو او استعمارچیانو خوی دی او هغه ورځ لیرې نه ده چې د پښتونستان ننګیالی ولس د پښتونستان د حقیقت ثبوت د فداکارۍ او وطندوستۍ په زور وځلوي او د خپلې پاکې خاورې څخه د استعمار او استثمار تورې تیارې لیرې کړي.

پښتونستانیان د خان عبدالغفار خان، خان عبدالصمد خان او د اسې نورو سترو مشرانو په څېر فداکار او وطندوست لارښوونکي او مجاهد ځوانان لري او کولای شي د خپلو ملي مجاهدینو په فداکارۍ خپله خاوره خپلواکه او خپل سرنوشت په خپله پلاس کښې ونیسي او د بهترین ملي خپلواک ژوند څخه ګټه واخلي.

آزاد دې وي پښتونستان.

غ «دانیوال»:

# د وړو کو روزنه او پالنه

د وړو کي ذهن د لندې لښتې په څېر دی چې هرې خوا ته ئې کږ وې همغې خوا ته اوړي، او که د کوچنیوالي څخه ئې روزنه او معنوي پالنه ونه شي او اخلاقي خوا ته ئې پام وانه ووړي د هغه وړو کي په ذهنیت کښې منفي افکار او ناوړه خویونه ځای نیسي او ورو ورو فسادي او بد اخلاقه ځني جوړېږي او نه یوازې ئې ژوند د ځان په ګټه نه وي بلکه د خپلې ټولنې د زیان او شر سبب هم ګرځي.

مور د وړو کي لومړی او بهترین مربي او کور د هغه اولینه مدرسه ده، هغه تعلیم او زده کړه چې وړو کی د کور په محیط کښې د خپل د هغه خواخوږي او مهربان مربي څخه اخلي او هغه اغېزه چې د هغه روزنه او د مور او پلار کړه وړه، افکار، او کورني حالات ئې د وړو کو پر ذهن او دماغ چندی د ژوند په وروستیو دورو کي دومره زیات اغېزه نه لري، بلکه د کور روزنه او افکار ئې د وړو کي د طبیعت جزء ګرځي.

وړو کی کم سن د خپلو والدینو، کورنیو مشرانو او د کور د نورو غړو مرستې ته اړ دی او اوس د یو جزئي کار د کولو دس

او توان نه لري، سبا چې لوی شي د هېواد د راتلونکي سرنوشت ورته سپارل کېږي او همدغه د نن ورځې وړو کي د سبا ځوانان او پېغلې دي او د ټولنې هیله د هغو فعالیت، وطندوستي، صداقت او فداکارۍ خوا ته اوړي.

وړو کي د مور او پلار د دواړو او ګډ ژوند د ونې خوږه مېوه او نهال دی او والدین کولای شي چې دغه نهالګي په پوره توګه وروزي او ترڅو ترې ئې ورسوي څو چې مېوه ئې دوی او د ټولنې نور غړي وخوري.

کوم کسان چې د خپلو وړو کو روزنې او اخلاقي فضایلو ته پام نه دی اړولی او معنوي ئې خپل سر ته پرې ایښي او یا ئې د فساد او ګمراهۍ خوا ته بیولي دي نو زیان او شر ئې فرد او ټولنې دواړو ته رسېدلی او خپل ژوند ئې هم په تکلیف او تریخ شوی دی.

کومه مور چې د کور په دننه انتظام او سرپښته سربېره د خپلو وړو کو په روزنه کښې ډېر زیار باسي او په دغه هڅه کښې خپله خدائي او ملي وجیبه سرته رسوي د هغې مقام د اسلام او ټولنې په نزد د ډېر قدر، ستاینې او نمانځنې وړ دی او برځای دی چې په داسې مور خپل زوزل شوی زوی او تربیه شوې لور ویاړ وکړي.

د وړو کو د روزنې د اجتماعي ارزښت له کبله دی چې اړه والو د وړو کو د پاره یوه خاصه ورځ ځانګړې ده په دغه ورځ پسرنورو ګټورو پروګرامونو سربېره هغو وړو کو ته جایزې ورکوي چې روغ او سالم دي او نظافت ته ئې پام اوښتی او تر نورو وړو کو امتیاز ولري.

مور باید هڅه وکړي د خپلو وړو کو په تعلیم، تربیه او کمالاتو کښې کوتاهي ونه کړي او پرې نږدي چې دغه ګل غوړېدو ته لوی شي او یا ئې د محیط او نیز اکوړ د باړدي تربیه خرابه او بد اخلاق خاوند نه کړي بلکه باید په دغه لار کښې سربېره پردې چې ښوونځي ته ئې واستوي تل تر تله ئې مراقبت او د اخلاقو، افکارو او اعمالو عادتونه هم وکړي.

مور باید خپل وړو کي د هغو د راتلونکي زماني د پاره وروزي او هغسې افکار او خیالات پکښې پیدا کړي چې ددوی د عصر د پاره په درد وخوري.

په وړو کو کښې د وطندوستي، ملت پروري او دیانت احساس پیدا کول او د هغو اخلاقو ته پام اړول د عصر غوښتنه او ستر خدمت دی او وطندوستان او واقعي منورین دا کار کوي او دغه ستر کار تر عهدې په ښه توګه وزي.

# محیط او د هغه تأثیر په روزلو کې

پخوانی یونان په دې عقیده
وه چې د محیط د خلکو په وده او
د عقولو په نوعیت کښې لوی تأثیر
او مهم نقش لري حتی د هغه یونان
والې چې د محیط د بدلون له امله

نه یوازې نوعیت تغیر خوري
بلکه غیر عضوي ماده په عضوي
ماده هم تبدیلیږي څرنګه چې
محیط د حیواناتو د پیدا کیدو
په نوعیت او د هغو په ژوند باندې
تأثیر اچوي نو د انسانانو په

وده کښې هم تأثیر لري. لکه
څرنګه چې ډېر په دې عقیده دي
چې والي د انسانانو د پوست او
د رنګ کیفیت د لمر په تودوخه اړه
لري او د عقولو ایټ والي. او

او هم والي د خوړاکونو په کمیت
پورې تړلی دی همدارنګه تروالي
او پخه والي د لمر په تودوخه
او د هغو په نوعیت کښې دی حتی
والي چې تربیه د عقل او استعداد

په ډېر والي یا کموالي کښې مهم
رول لري یعنې د صحي تربیې په اثر
استعداد او عقل ډېروالی کوي او
د بدې تربیې له امله عقل او استعداد
نقصان مومي او کموالی پیدا کوي

لکه دا چې د هغه کسان د خلکو
څوله ممیزات د محیط په بیلوالي
کښې ګڼوي.

د ۱۷ او ۱۸ قرن د فلسفې
پوهانو هم د هغه عقیدې ټینګه کړې
ده او لیکي:

چې د محیط، د تربیې، نوعیت او
سیسټم د انسانانو په پیدایښت کښې
لوی تأثیرات لري دوی وائي قوله انسانان
په یوه ډول دنیا ته راځي خو کوم شیان
چې د دوی د اختلاف او توپیر باعث
ګرځیدلي دي هم هغه د محیط بیلوالی

د حوادثو او د ژوند د شیانو توپیر دی.

د امام غزالي [رح] د ځینو نظریو
څخه داسې ښکاري چې د هغه لوړ شخصیت
هم د هغه ډول نظر یو ته میل درلود
ځکه دی وائي (کوچنی یو نفیس او

ساده جوهر دی چې په هغه کښې هیڅ
ډول نقش نشته خو د هر ډول نقش قابلیت
لري) «ابن خلدون» هم د خپلې مقدمې
یو فصل د دغې برخې ته وقف کړی او
د دغې موضوع د تائید لپاره ئې ډېر
دلائل راوړي دي.

«دیکارت» «پخپله» یوه مشهوره
مقاله کښې لیکلي دي چې د مونږ د فکر
او عقیدو اختلاف د دې دلیل نه دی چې
د ځینو عقلونه قوي او د ځینو ضعیفه
دي بلکه د دې اختلاف منشاء یوازې

د مونږ مختلف روښونه دي یعنې موږ
قوله یو غایه او یو مخصوص غرض
نه تعقیبوو.

«روسو» «جان لاک» او «آدم سمیت»
هم د دغو لویو نظریو د خاوندانو څخه
دي.

د دوی پیړۍ مخته د متحده ایالاتو
د استقلال د روحیې منشأ هم د هغه جمله
څه چې وایي (قوله انسانان په
پیدایښت او استعداد کښې برابر دي)
د دغې مفکورې په دوامداره توګه د

دیموکراسي حکومتونو د جوړښت
اساس منځ ته راوړی دی او په ټولو
طبقو کښې ئې د تربیې د عمومیت
ذهن په مساوي ډول پیدا کړی دی

او د هغه مفکوره د یوه واحد دین
د پیروي مهم عامل هم بلل کیږي
د دې وائي چې د تمدن معنی د یوه

محیط د احوال پېښه کیده دی او په
مدنیت کښې د وړاندې والي او
پرمختګ مفهوم د محیط اصلاح
کول دي او بس.

پورتنۍ نظریه تر اوسني
عصر تر رسیدو پورې څو پېړۍ که
دنیې په پرمخ باته شوه خو نننی
عصر د علم او فلسفې په برخه کښې
نوي اړ دمقالونه منځ ته راوړل

اجتماعي علوم خپله شول او
پوهانو په یوه سلسله څیړنو او
مطالعو پیل وکړ د ډېرو تجربو
وروسته د دنیا لوړي د علم پوهانو
دا ثابته کړه چې د محیط تأثیر

نسبت د وراثت و تأثیر ته ډېر لږ
دی او هیڅ یو محیط نشي کولای چې
غیر مادي عضوه په مادي عضوه
تبدیل کړي خو بیا هم د اوسني
عصر د دنیا لوړي د علم پوهان د

محیط له تأثیراتو څخه منکره
نه دي هغه پېښه چې د دوی پېړۍ
د مخه څرګنده شوه د محیط تأثیر
ئې په ښکاره ډول اثبات کړي پېښه
دا ډول ده:

د هند په شمال لویدیځ برخو کښې

(پرمخ)

د ځنګلو په ما بین کښې داسې چرمښانو ژوند کاوه چې کله کله به ئې پر شاوخوا نژدې کلیو باندې حمله کوله او په نتیجه کښې به ئې ځینې کوچنیان وخوړل او ځینې به ئې له ځانه سره بوتلل او هلته به ئې د خپلو بچیانو په شان روزل .

یوه ورځ له بشر دوستان چې له دغو پیښو څخه خبر شول په دې لټه کښې شول چې باید دغو کوچنیانو ته نجات ورکړي او د چرمښانو د منګلو څخه ئې وباسي ددې بخپل دغه عزم کښې پسله ډیرو تکلیفو او سختیو حتی نژدې ؤ چې خپل ژوند هم له لاسه ورکړي به دې بریالي

شول چې ځینې ژوندي کوچنیان د دوی له منګلو څخه خلاص کړي دغه کوچنیان چې د وحشي کوچنیانو په نامه یا د شرمښانو د کوچنیانو په نامه یادیدل له دوی د شرمښانو د بچیانو په څیر خونه درلودل او د څیرونکو حیوانانو پښې ئې کولې کالي ئې څیرل او د یوازې والي ژوند ته

ئې هڅه کوله په تاریکو ځایو کښې به غزیدل او د شرمښانو په شان به بربوتل ډیر وو ګړو کوښښ وکړ چې دوی د انسانانو په شان وروزي انساني ادب او تهذیب ورته وښئي خو په دغه کار هیڅ بریالي نشول صرف دومره ئې وکړای شو چې په هغو کښې د اطاعت او فرمانبردارۍ روح قوي کړي درد، د راحت یادښیانو د غوښتلو په وخت

کښې ځینې مخصوص آوازونه وباسي پروفیسر فلاتین بول بخپل کتاب کښې چې (ژوندون د هند په یغماګانو کښې) نومیږي لیکلي دي (هغه کوچنی چې «سانیغار» نومیده او دیوه تن هندي له خوا په یوه ځار کښې پیدا شو او په نیټه ٤-٢-١٨٦٧ دارالمساکین ته ورکړه شو داسې لیکي:

دغه کوچني په وجود کښې د بیعقلي نښې موجودې وې د تندي کنځې ئې ناموزونې او ټول حرکات او سکنات ئې په وحشیانه ډول اجرا کوله او کله کله به ئې خپل غاښونه د یوه څیرونکي حیوان په څیر ښکاره کول د شیانو د پیژندنې لپاره ئې د سامعې او شامې حواس بکار

اچول او د ذایقې څخه ئې په پر کار نه اخیست او هیڅ ممکنه نه وه چې بیله یوه ټینګې مراقبتې څخه په یوه کار مشغول پاتې شي مثلاً کله چې به یوه ټوکرې به لاس ورکړه شوه تر څو چې به تر مراقبت لاندې ؤ ټوکرې به ئې په لاس کښې نیولې وه خو کله چې به د مراقبت څخه ووت نو ټوکرې به ئې دستي ایله کړه لاسونه ئې ٧٤ سانتي متره اوږده

وه خو په څلورو هم تګ وکړای شي د تګ په وخت کې بائې خپل سر راستې او چپه خوا ته ګرزاوه او څیر څیر به ئې کتل کله کله به د تګ په وخت کښې نابېره داسې ودریدی چې چا به ویل پر کوم دښمن د حملې کولو خیال لري په همدې ډول ئې ٢٩ کاله ژوند وکې او په ١٧٩٦ ع کال مړ شو .

د بیالوژۍ د علم پوهانو پر تناسلي سلولونو باندې تر القاح د مخه او تر القاح وروسته ډیرې تجربې کړي دي او هم ئې د حیوانانو (جنینونه) په مختلفو وختونو

کښې تر ازموینې لاندې نیولي دي خو تر ډیرو تجربو وروسته ودې نتیجې ته ورسیدل چې محیط د حیوانانو د ضعف او قوت په وده کښې خورا ډیر تأثیر لري .

پروفیسر (کنکلین) بخپل بارزښته کتاب کښې چې د (محیط او وراثت) په نامه دی پر دغه موضوع باندې په رڼا اچولې ده او په دغه باره کښې ئې ډیر مثالونه ذکر کړیدي وائي چې په تناسلي سلولونو او په جنینو کښې خارجي مصنوعي تأثیرات ډیره اغیزه کوي ځینو

پوهانو په دغه برخه کښې بیلې بیلې لارې تعقیب کړیدي او ډیرې عجیبې نتیجې ئې لاس ته راوړي دي حتی د دغو تجربو د تطبیق په اثر ډیرو حیوانانو خپل اصلي تشکل له لاسه ورکړیدی یعنې (ناقص الاعضاء) ژیږیدلي دي او یا یوه عضوه ئې په غیر طبیعي ځای کښې تشکیل شوې ده .

## د طبیعي محیط تأثیر په ساکښانو کې :

پورته تغیرونه هغه تأثیرات دي چې د خلکو له خوا په مصنوعي ډول په ساکښانو کښې منځته راغلي دي خو

هغه تغیرونه چې د طبیعي محیط له خوا په ساکښانو کښې منځته راځي (د محیط د قانون) په نامه یاد شوي او داسې تعبیر کیږي (هر ژوندی شی باید خپل ژوند د محیط د

ژوند سره برابر کړي) یعنې خپل روش او عمومي حالت د خپل محیط د بدلون سره سم عوض کړي او په دې توګه خپل ژوند ته ادامه ورکړي .

(ډاروین) دغه تعدیل او بدلون ته (تنازع للبقا) وائي او هغه (د ژوند په لار کښې د کوشش) کولو قانون بولي .

نور به ۹ مخ کې

د امریکائی کیهان نورد «اندرس» په قلم:　　　　　د «انیوال» ژباړه:

# بشر به په آینده کښې د فضا نوردۍ په لار کښې څه ډول مبارزه وکړي؟

د ۱۹۶۸ کال د دسامبر په ۲۱ نیټه د امریکې اتمه اپولو فضاته و توغول شوه، دا لومړنی فضائی سفر و. د اتمې اپولو فضانوردان په دغه تاریخي سفر کښې امریکائی کیهان نوردان فرانک بورمان، جیمز لاول او ویلیام اندرس شامل وو.

بورمان په دغه سفر سره په دوهم فضائی سفر کښې ګډون وکړ او د لاول دریم سفر و. خو اندرس لومړی ځل سفر کاوه، هو فضائی سفر د حقیقت له مخه د تعجب او حیرت وړ دی.

د اتمې اپولو د فضائی سفر شهرت په ټوله نړۍ کښې خپور شو دغه کیهانی بیړۍ مځکې ته ژر را ګرځیده او بودی لس ځله د مځکې پر شاوخوا را وګرځیده.

تر بو څه موده وروسته د امریکې د جمهور رئیس ریچارد نکسن په غوښتنه اندرس د کیهان نوردۍ څخه لاس واخیست د امریکې د ملی فضانوردۍ د هیئات د آمر او هم د فضانوردۍ په چارو کښې د نکسن د مشاور په حیث مقرر شو.

په دغه مقاله کښې اندرس د فضانوردۍ د آینده په باب خپل نظریات ځرګند وي:

شل کاله دمخه چې زه هم توی ځوانی ته رسیدلی وم هیڅ وخت می فکر نه کاوه چې یو ورځ به د فضائی بیړۍ کښې کښینم او د دوو تنو نورو ملګرو سره سپوږمۍ ته ولاړ شم، په هغه وخت کښې د فضانورد کلمه نه وه وضع شوی او په هغه ورځو کښې دغه ډول چاری یوازې په علمي او تخیلي داستانو کښې یادیدلی اود خوب و خیال جنبه ئې درلوده خو نن د بشر هغه خوب د حقیقت بڼه غوره کړه.

موږ په خپل فضائی سفر کښې نه یوازې د سپوږمۍ پر شاوخوا را وګرځیدو بلکې په سپوږمۍ کښې بلې

شوال او ځینې ستاسو څخه چې دغه مقاله اولی امکان لری چې په آینده کښې نورو کروته ولاړ شی او په دې ډول به هغوی هم زما په څیر خپلی آرزو ته ورسیږي.

زه ږ د نسل دباره په سپوږمۍ کښې بلې ګیډل د فضا د تسخیر د مقدمې په حیث دی. ځانی تاسو لومړنی کسان اوسی چې په نورو کرو کښې به په ژوند کولو دسترس پیدا کړی، زه اوس په صحیح توګه نه پوهیږم چې په آینده کښې څوک نورو کروته په ورتلو بریالی کیږي او آیا په نورو کرو کښې ژوند وجود لری که نه؟

خو د نجوم یوه نامتو پوه ۱۵ کلنز (هارلو شاپلی) اټکل کړی دی چې د یو سل ملیونو ستورو په حدودو کښې د ژوند کولو وړ دی، دی وایی:

تصور مه کوی هغه ستوری چې موږ په هغه کښې ژوند کوو یوازینی ستوری دی چې د هستی په عالم کښې شته زه هم د دغه پوه د نظریې سره موافق یم، زه پوهیږم چې ډیر ځوانان شته چې په دې هیله دی چې یوه ورځ فضانورد او یا په فضائی چارو کښې وارد شی اوزه د هغو سره خبری کوم، غواړم هغوی تشویق کړم، داسی ځوانان شته چې به دغه عجیب اونوی علم کښې ځیږ نه وکړی، باید زیات کوشش په کار واچوی، د هوستون په فضائی مرکز کښې: اتمې اپولو د الوتنې دباره په منځنی توګه ۲۳ کاله کوشش وشو، څوک چې غواړی په دغه هکله د فضائی علوم مطالعه وکړی په اوله مرحله کښې باید د ریاضیات او علوم و څیړي، البته زه دا دیپاتو اجتماعی علومو او بشری پوهې منکر نه یم او پوهیږم د مخه تردې چې فضاته ولاړ شو باید د مځکې چاری و څیړو خو د هغه چا دباره چې د فضائی علومو شوق او مینه لری هغوته د ریاضیات او ساینس لومړی درجه اهمیت

ولري، فضائي څېړونکي نشي کولای د محیط، د طبیعت او د مځکې د کرې د ټوله حقایقو څخه بې خبره وي.

کوم وخت چې خپل د زده کړې سوابق را یادوم هیله کوم چې دوباره عمر مې درلودای او اوس د ځوانۍ په سن وای او درسونو ته په متوجه وای او کار مې کولای، یو لایق زده کوونکی باید د درسونه د طوطي په څېر زده نه کړي بلکې باید د مطلبونو حقیقت ته داخل شي او ځان پـه وپوهوي څو چې حقایق ئې له دماغ څخه ونه وزي.

ګرانو ځوانانو! تاسو داسې پوهې ته اړتیا لرئ چې د عمر تر پایه پورې ستاسو د ذهن شته‌منۍ زیاته او سرشاره وساتي او دغه پوهه په فضائي علومو پورې منحصره نه ده بلکې هر کار او شغل چې مو غوره کړی دی تاسو زده کړې ته ضرورت لرئ.

وګورئ هر څومره چې د ژوند زیات ګړي د رباندې تیرېږي، هیڅ درسونه چې په پوهنځي کښې وایاست ستاسو په فکر اهمیت نلري خو په دغه حقیقت نه پوهېږئ چې د علومو مطالعه ستاسو د حافظې سره مرسته او هغه تقویه کوي.

د ژوند دوې نورې جنبې د توجه وړ دي: یو اخلاق او بل د بدني نیرو درلودل، دغه دواړه د ژوند څخه د ګټې اخستلو اساسي شرط دي او تاسو چې په آینده کښې هر کسب غوره کوئ خو که وغواړئ په فضانوردۍ کښې شامل شئ دغو دوو مهمو ټکو ته پام ولرئ.

زه په ۱۹۶۳ کال فضانورد شوم، په هغه وخت کښې زه یو مهندس او د امریکې په هوائي قواؤ کښې د پیلوټۍ دفن یو لارښوونکی وم، د هغه وخت څخه چې د پوهنتون څخه فارغ شوم، زما له همصنفیانو څخه په سلو کښې ۲۵ هوائي قواؤ ته ولاړل، په هغه وخت کښې د هوائي قواؤ پوهنتون نه و او که تاسو غوښتلای چې پیلوټ شئ، لکه څرنګه چې ما غوښتل او بریالی شوم داسې څرګندېدله چې په هوائي قواؤ کښې شاملېدل بهترین موقعیت و.

له هغه لومړۍ ورځ څخه چې زه د فضانوردۍ کار ته داخل شوم ما ته مشکله وه چې دا ومنم چې یوه ورځ به سپوږمۍ ته ولاړ شم، اصلا د دغه موضوع د باور وړ نه وه. خو په هغه وخت کښې د دغه موضوع په هکله ډېرې خبرې کېدلې او ما ویل کاوه چې د داسې کار د پاره ټاکل شوی یم.

هر څه چې مې د جیمیني او آپولو پروګرام مطالعه کړي، زیات معتقد شوم چې موږ کولای شو په ۱۹۷۰ کال په سپوږمۍ کښې بلې شو، عیناً په هغه ډول چې ځواني جمهور رئیس جان اف کینډي ئې پیشبیني کړې وه.

یو له هغو آوازو څخه چې د کیهان نوردانو په هکله شته دي دا دي چې خلك وایي کیهان نوردان د مجسمې په څېر د صنعت د لاس لوبونې دي چې حرکت ئې په هغه ماشین تړلی دی چې فرمان ئې په لاس کښې لري، حقیقت دا دی کیهان نوردان یو د بل سره سیالي کوي خو دغه رقابت ته په وظیفه کښې د خالت نه ورکوي، هغوی پوهېږي چې کیهان نوردان باید خپل کوشش په ګډه په کار واچوي.

یو آرتیست غواړي قول و یا دی ځان ته د ګټې او د هنر ځلانده ستوری شي، په داسې حال چې یو کیهان نورد باید خپل کوشش د نورو سره په ګډه وکړي څو چې وظیفه ئې سر ته ورسېږي.

دغه موضوع د ۱۱ اپولو د یوه پیلوټ میشل کولینز په هکله صدق کوي، میشل د کلمبیا د کپسول لارښوونه کوله چې پر سپوږمۍ راو ګرزي نو په هغه وخت کښې په خپله په کپسول کښې پاته شو او نیل آرمسترانګ او ادوین الدرین په سپوږمۍ کښې بلې شول.

میشل البته میل درلود چې خپله وظیفه د دغو دوو تنو سره بدله کړي خو د هوستون د فضائي مرکز څخه خبر ورسید چې په هغه کښتۍ کښې پاته شي چې د سپوږمۍ پر شاوخوا راګرزي او دغه کار د ۱۲ فضائي کښتۍ په هکله وشو (د یك ګوردون) په کښتۍ کښې پاته شو پیتر کونراد او الن بین په سپوږمۍ کښې پیاده شول.

## د فضانوردۍ د موفقیت راز:

په عمومي اذهانو کښې د فضانوردۍ په هکله یو بل غلط تصور موجود دی او خلك خیال کوي، فضانوردان هیڅ کله نه وېرېږي، زه خیال کوم باید د وېرې او اندېښنې ترمنځ فرق وکړو، وېره د دې باعث ګرزي چې فضانورد

اصلاً خپل کار ته دوام ورنه کړای
شي خو اندېښنه داسې لمونځکې
عمل دی چې موږ به په کار کولو
باندې مسلط کوي.

دیوه فضانورد له نقطه نظره
که هغه وپوهیږي په کومه وسله
سمبال دی او په هغه باور ولري
که پخپل قدرت او توان معتقد وي

ویره یې له منځه ځي، خو اندېښنه
ورسره وي، داځکه انسان له هغه
کار څخه چې ته یې وي کړي او نه
پوهیږي چې پای یې څه ډول دي

په اندېښنه کښې وي په تیره بیا په
کیهاني چارو کښې چې دومره
ډېرې مهمې او خطرناکې دي، که
ما پخپله پدغه هکله اندېښنه

نه درلودای متعجب به وای، خو
ډېر د مخه د ساترن توغندي نه
فضا ته بوتلم او پدغه فضائي سفر
کښې ؤ چې ما د ځان سره وویل

چې د خطرونو څخه هرکلي ارزښت
لري، ما فکر کاوه چې د ځان
کورنۍ او هیواد دپاره ویاړ
ګټم.

هغه وخت چې تاسو فضا ته د
تللو دپاره چمتو کیږئ مسلمه ده
چې د فضانوردۍ په پروګرام کښې
به زیات تغیرات راشي، اوس به

تاسو د جیټ پیلوټ یاست چې په
آینده کښې فضانورد شئ.

پدغه ورځو کښې چې موږ د
فضائي عصر په درشل کښې یو، هره
ورځ د زیاتو موفقیتونو شاهد یو

په آینده کښې به فضانورد باید
مهندس، فیزیک دان، ځمکې
پېژندونکي او د علم الحیات پوه

وي، داسې تعلیمیافته کسان
کولای شي فضا تسخیر کړي او
لدغه کبله ده چې وائي صحیح
تعلیم او تربیه د فضانوردو په هکله
زیات اهمیت لري.

د مثلا په ۱۹۸۰ ع کال کښې
به ۵۰ تنه فضانوردان وروزو

البته مجهز آزموینځي به زموږ په
اختیار کښې وي، موږ رسیدلو
متخصصینو ته اړتیا لرو چې په
توغندیو کښې کیهاني سفرونه وکړي
او په فضائي چارو کښې تکړه وي
د نړۍ په هر کوټ او حتی د

امریکې په متحده ایالتونو کښې
داسې تنقید کوونکي شته دي
چې وائي: ځله د امریکې دولت
دومره زیاتې پیسې په فضائي چارو
او پلټنو لګوي؟

موږ د ٤ څخه تر ٦ بیلیون
ډالرو پورې د کاله په فضائي
پلټنو لګوو خو دغه پیسې تر هغو
لګښتونو کمې دي چې دلته به

سامانو او ورزشي چارو خرڅیږي
زه فکر کوم فضا ته سفر او د ستورو
د نړۍ کشفول د نړۍ والو دپاره
ډېره ګټه لري، مثلا هغه خاورې

او ډبرې چې نیل آرمسټرانګ
او آلډرین د سپوږمۍ څخه
راوړې مطالعه شوې او ثابته یې

کړه چې دغه خاورې د نباتاتو
رشد دوه برابره کوي.

آیا د سپوږمۍ په خاوره
کښې داسې شیان موندل کیږي
چې د نباتاتو په رشد کښې اغیزه
لري؟

ددې پوښتنې ځواب مثبت دی او
موږ کولای شو چې د سپوږمۍ له خاورو
څخه په کیمیاوي کود کښې کار واخلو
او دومره زیات حاصلات او غلې به لاس
ته ځني راشي چې د هغو پیسو او لګښتونو
جبران به وکړي چې په فضائي چارو
خرڅې شوې دي.

که څوک زما څخه پوښتنه وکړي
چې آیا غواړم سپوږمۍ ته بیا ولاړ شم
باید ووایم پدې کار ډېر خوښیږم دا
هغه هدف دی چې ما پنځه کاله پدې لار

کښې هڅه وکړه، که زما څخه د پوښتل
شي چې د سپوږمۍ پرشاوخوا به زه د
ګرځیدو تر منځ لکه څرنګه چې په اتمه
اپولو کښې سرته ورسیده، او یا د ځمکې

پرشاوخوا د ګرځیدو څخه لکه څرنګه
چې په نهمه اپولو کښې منځ ته راغی کوم
یو غوره کړم، نه د ځمکې پرشاوخوا

راګرځیدنه خوښوم، کوم شی چې زه په
حقیقت له هغه د اجرا کولو میل
لرم د ځمکې پرشاوخوا ګرځیده دی، دا

ځکه ځمکه زموږ د وطن ستوری دی
هرکله چې د هغه پر ګرد چاپیره ګرځم
ډېرې ښکلې منظرې وینم خو په سپوږمۍ
کښې دغه حالت نشته.

ما د سپوږمۍ پرشاوخوا د ګرځیدو
په وخت کښې ډېر شیان لیدلي دي خو د
ځمکې په هکله کافي معلومات نه لرم او
زیات مشاهدات مې نه دي کړي.

ځینې وختونه چې په واشنګټن کښې
د خپلې ادارې څخه راووزم، سپوږمۍ
نه ګورم او خپل ځان چې څومره هغې ته

نږدې یم د خلکو څخه جلا ګڼم، زما
شخصي وضع اوس غیر له هغه څخه ده چې
د اتمې اپولو تر مخه وه، سپوږمۍ داسې
فلکري ده، چې موږ باید قبول وپوهیږو

پاته په ۱۰ م مخ کښې

دکتور رشيدي منشي يار:

# د وړوکو د جشن مفهوم

ښکاره ده چې ننني کوچنيان د هيواد د سبا ورځې ځوانان دي او د دوی تعليم او تربيه د دوی په راتلونکي ژوند کښې ارزښتناک نقش لوبوي.

چې په دې باره کښې يو شاعر څه ښه ويلي دي:

دهقان سالخورده چه خوب
گفت با پسر
ای جان من به جز از کشته ندرود

همدغه سبب دی چې د نړۍ مترقي هيوادونه په دغه ارزښتناک حقيقت پوه شوي او د يوې پېړۍ راهيسې د کوچنيانو او نورو ځوانانو تربيې ته جدي توجه شوې او هم يو شمير قوانين او تشکيلات منځ ته راغلي دي.

په تېره بيا د نړۍ تر دوهمې جګړې وروسته د يونيسيف مؤسسې په بين المللي سويه په کار لاس پورې کړی او په پرله پسې توګه يې له هغه ځايه څخه مستحقو هيوادو ته څه د دواوو، طبي وسايلو، حمل و نقل وسايلو، شيدو، صابونو او نورو شيانو د ليږلو له لارې او همدا راز د مشاورينو د ليږلو او فيلمو شيانو د ورکړې له لارې پرله پسې مرستې کړي دي.

چې د دغې مؤسسې دغه عام المنفعه پرله پسې مرستې د قدر وړ دي.

موږ چې نن په ټول هيواد کښې د وړوکو جشن کوو بايد ملتفت اوسو چې له دې جشن څخه منظور يوازې تفريح او ساتيري نه دي بلکه د هغه مفهوم دا دی چې د يوې خوا د وړوکي لوړ مقام ته په اهميت قايل، او د کوچنيانو حقوقي حيثيت محترم وګڼو، او د هغو په روزنه او پالنه کښې توجه وکړو څو لايق او پاک نفسه ځوانان هيواد ته وړاندې کړو او د بل پلوه د وړوکو د جشن د ورځې په نمانځلو سره د اعانې په ټولولو د روزنتون مالي بنسټ ټينګ کړو. ځکه روزنتون د هيواد د ټولو لپاره د وړوکو په باب ښه ټول پروګرامونه په لاس نه شوای کولای چې مخې ته يې بوزي.

البته د مرستې کولو د مقدار اندازه په ټولو د بشر دوستۍ په حس او ملي غرور پاندې مربوط وي چې بيله شکه د افغان قهرمان ملت د دغې مرستو کولو په باره کښې ښه امتحانونه ورکړي دي، ځکه هر وخت چې د اعانې خبرې منځ ته راغلي دي د خير غوښتلو ږغ ته يې په ډېر ښه نيت لبيک ويلي، او هر چا د خپل وس سره سم لږ او ډېر مرسته کړې ده.

مرسته او اعانه که څه هم ډېره لږه او ناڅيزه وي خو د حقيقي مفهوم له نګاه څخه ډېره عالي، او په دې نحوا چې له قطرې، قطرې څخه سيند جوړيږي غوره کار دی.

زه په دې وخت کښې د وړوکو د جشن له کبله د هيواد ټولو وړوکو ته که نر وي که ښځه، د زړه له کومې مبارکي وايم او په دې آرزو يم چې د دوی ټول په ژوند کې په موفقيت سر لوړي او په نوم سره اوسي.

(آمين)

---

(د ۵ مخ پاته)

## محيط او د هغه...

«سپنسر» وايي د ژوند مفهوم هغه دوام داره تغيرونه دي چې د محيط د تغير او د هغه سره د توافق له امله په خپله ځان کښې پيدا کيږي په بل عبارت لازمه ده چې هر ژوندي شی د محيط د تغير سره سم استعدادونه ولري او په دې توګه د محيط د تغير په مطابق ژوند وکړای شي که څه هم د محيط د عواملو سره مقاومت نه شي کولای او بايد ځان کښې تعديل نه شي راوستلای نو د داسې کسانو مخ د ضعف پر خوا وي او په پای کښې له منځه ځي د پورتنيو کړنو څخه داسې معلوميږي چې د هر ساه کښ ژوندون د محيط سره اړيکې لري او محيط پر هغه تاثير کوي او کله کله د ده تاثير هم پر محيط لوېږي.

دعبدالصمد نصر خواه ژباړه:

قیام الدین «کشاف»:

د کابل نه راليږونه:

# دین د اجتماعي ژوندانه د هوساینې ضمانت کوي

ځکه چې انسان یو اجتماعي مخلوق او د اجتماعي ژوندانه د تامین او په کیدو لپاره یو لړ داسي وسایلو ته احتیاج لري چې و کولی شي د هغو په لاس ته راوستلو سره خپل ژوند په مناسبه شان چې هیله لري پرمخ بوځي نو دې ته مجبور دی چې د خپلی مادي غریزې په پیروي سره د ګټو د ترلاسه کولو او د تاوان

د مخنیوي په لار کښې هڅه وکړي خو دا چې ټول انسانان د فکر، تدبیر، علم بوهې د میلو د تشخیص او مربوطو حقوقو د ژوندی کولو په باب یو شانته نه دي ځینې دومره چټک او چالاک دي چې د خپلی جزئي ګټې د لاس ته راوړلو په غرض

نورو خلکو ته ډول ډول پلمې او بهانې جوړوي او له هغه سره خپل دوستان او مسلمانان ورو په ترقۍ، حقوق یې تر پښو لاندې کوي، عزت یې پایمالوي، ظلم پرې کوي، مال یې خوري خو مقصد چې ده په عایداتو کښې زیاتوالی راشي او

ځینې نور له خپله ځانه هڅه د تاوان د لیرې کولو په غرض نورو مسلمانانو ته تاوان اړوي ژوندیې په خطر کښې اچوي په سرنوشت یې لوبې کوي خو چې زیانمن نشي او له خپله ځانه هغه خطر بچ کړي چې په نتیجه کښې د ټولنې ترمنځ

بولې جنجالونه او شخړې پیدا کیږي، د اجتماعي ژوندانه بنسټ دړیږي او له خطر سره مخامخ کیږي

امن او آرامي له منځه ځي نو د دې لپاره چې په ټولنه کښې ګډوډي او بې نظمي پیښه نشي هوسا او

نیکمرغه ژوند ورته برخه شي یو لړ داسي قوانینو ته احتیاج احساسیږي چې و کولی شي د

انسان مادي غریزه د اعتدال په حال کښې وساتي او د ټولنې غړي دې ته مجبور کړي چې په

خپلو عملونو کښې نه تر حد تیری ونه کړي او نه کمی، د اخلاقي او اجتماعي مفاسدو مخه ونیسي

د ظلم، تیری، د دروغ ویلو خیانت، ټګی، بې ناموسي په عوض صداقت، امانت داري، پاکي

ترحم، عدالت، انصاف، حیا او داسي نور سپیڅلي خویونه منځ ته راوړي تر خپلو ځانې ګټو

اجتماعي ګټې ته وبولي هغه څه چې ځانته خوښوي د بل مسلمان لپاره ئي هم خوښ کړي، او هغه څه چې

پخپله کرکه ځني کوي او د ځان لپاره ئي مناسب نه ګڼي د بل د پاره ئي هم مناسب ونه ګڼي چې د غه ډول

جامع او د ژوندانه متضمن قانون

نور به ۱۲ مخ کښې

(د ۸ مخ پاته)

# بشر به په آینده کښې . . .

چې هغه په‌ترا ویښ نو .

ورو سته له هغه چې زه د پوولسي اپولو د الوتنې د پروژې د خدمت کوونکو یو جز وم جمهور رئیس ریچارد نیکسن زه د امریکې د ملي فضانوردی د هیئات د مشر په حیث وټاکلم، اوس هم پیلوټ یم نه فضانورد، که څه هم بیا به سپوږمۍ ته ولاړ نشم خو د خپل هیواد د راتلونکو فضائي سفرونو په پروګرامونو کښې به مرسته وکړم او دا کار به د هغه فضائي سفر سره یو شان ګڼم چې ما سپوږمۍ ته وکړ .

دا ډول مبارزې زما خوښې دي، یو داسي ورځ به راورسیږي چې ځینې له

تاسو دې ته راو بلل شي چې د دغه نړۍ په پرمختګ کښې برخه واخلي چې موږ به هغه کښې ژوند کوو، په دغه هکله کوم بهترین نصیحت چې زه باید تاسو ته وکړم هغه دا دی چې:

فضانوردان د غه راز کار او فداکارۍ ته چمتو دي او تاسو دا ډول فداکاریو ته ملا دی وتړی، زه غواړم د ځوانانو د مرستې د پاره د راتلونکی نړۍ د چمتووالي په غرض د یو دوزل شوی روح او بدن تاکید وکړم دا ځکه که په فضا کښې وی او که پر ځمکه د ځمدغې پولي څخه دا ډول توقع کیدای شي .

(پای)

الحاج حبیب الله (سرپاس):

# د مزار شریف د روضې کوترې

تاسو ته به معلومه وي چې حضرت شاه ولایت مآب علی کرم الله وجهه د کوفې په مسجد کښې زخمي او د روژې د مبارکې میاشتې پر ۲۱ نیټه شهید شو او په نجف کښې ایښول سوی دی بیا د مؤرخانو او د نورو معتبرو کتابو او مشهورو مأخذو په استناد د امام جعفر صادق (رض) په صلاح او

مشوره ابومسلم خراساني چې د بلخ پاچا و په (۱۲۹) هجري قمري کال کښې د نجف څخه را نقل کړ او د خیران په کلي کښې چې اوس د مزار ښار دی ایښول شوی دی وروسته بیا په (۵۳۰) کښې د سلطان سنجر سلجوقي په عصر کښې هغه قول سند و ته او وثایق چې

د ابو مسلم خراساني له خوا د دغه مبارک د داوړلو په نسبت لیکل شوي وه د مرو ښار په دارالاماره کښې پیدا شول سلطان سنجر ډیر و لښکرو او نورو سره پخپله مزار شریف ته راغی او یو لوی گنبد ئې د دغه مو څخه پر جوړه کړه او په (۸۸۵) کښې سلطان حسین میرزا

د (۹) زرو عسکرو سره چې مولانا عبدالرحمن جامي، مولینا حسین واعظ کاشفي او مولینا صبیح الدین او مولینا ملین علیهم رحمه ورسره ؤ مزار ته راغی او لوی عمارت ئې پر جوړه کی او تولیت ئې سید تاج الدین ته چې د خواجه عبدالله انصاري له اولادې څخه ؤ ور کړه بیا

د هغې زماني راهیسې ډیرو پاچاهانو له خوا نور تعمیرات هم شوي دي چې آخري تعمیر ئې بو لوی ښایسته مسجد دی چې زموږ د متدین پاچا معظم همایوني اعلیحضرت له خوا جوړ شوي دی او ساری نه لري.

د حضرت علی کرم الله وجهه د راوړل د نجف څخه بلخ ته ډیرو کتابو لیکلي او تصدیق کړی دی چې دا کتابونه په مختلفو زمانو کښې د معتبرو عالمانو او فاضلانو له خوا تصنیف شوي دي او د سنه کال دا او قافو د مجلې په لومړۍ گڼه کښې لیکل شوي دي.

(۱) تحفة الکرام علی شیر قانع ۱۷۰ پاڼه دوهم جلد

(۲) ضیاء المعرفه د ریاضي د رسایلو څخه ۵۲ پاڼه

(۳) بحر الاسرار د امیر محمد کتابدار د ملاولي زوی.

(٤) زبدة الاخبار د ابو حسن شعري کشمیري.

(٥) حبیب السیر د اخوندمیر هروی ۳۱ جزء ۲۳۸ پاڼه ۳ جلد.

(٦) منتظم ناصري ضیع الدوله ۷۸ پاڼه جلد ۲.

(۷) تذکرة المشایخ بلخ د محمد صالح ورسجي.

(۸) اکابر دین.

(۹) تاریخ کثیره صفحه ۱۱۲ د تاشکند طبع.

(۱۰) حدالاقایم داڵ پار عثماني ۳٦۱ پاڼه.

(۱۱) مرآة البلدان ناصري ضیع الدوله ۲۵۸ پاڼه لومړی جلد.

(۱۲) روضة الصفا خاوند شاهي ۷ جلد صفحه ۳۲ پاڼه د نولکشور چاپ.

(۱۳) روضة الصفا ناصري ۷ جلد ۱۹ پاڼه د تهران چاپ

(۱٤) حجة البیضاء د محمد مرید ۱۸۳ پاڼه د بمبئي چاپ.

(۱٥) مؤلفه محمد مؤمن بلخي.

دغه رنګه مجلې او ورځپاڼې چې په دغه موضوع باندې په مختلفو ایامو لیکل شوي یا لیکل کیږي دا په یقین سره موږ ته راښيي چې دی مبارک په بلخ کښې پروت دی

د شاه ولایت مآب د روضې په سبب د مزار شریف نور عمراني وضعیت هم تر پخوا ډیر ښه شوی دی یعنې د روضې شریفې پر شاوخوا باندې د گلانو ښې ښې باغچې، چمنونه، سړکونه، داړ بو حوضونه، فوارې، د برق

او بډده څراغونه، نور جشني کړو بونه په مختلفو رنګو سره د ښې لګیږي او نوی نوی عصري دوکانونه، مغازې، پارتمانونه، تجارتي سرایونه په نوی طرزد پخو خښتو او سمیټو څخه جوړ شوي او د دغو ټولو په منځ کښې د شاه ولایت مآب دوی لوئې لوئې شنې گنبدې او د روضې

عبدالرزاق «پالوال»:

# بست که لښکرگاه؟؟؟

د منځنی هلمند پرختیځه غاړه باندې یو کوچنۍ ښایسته او عصري ښار جوړ شوی دی او نور هم د پراختیاو په حال کښې دی .

دغه ښار په نومو کښې بې نومه دی یعني یو ټاکلی او ثابت نوم نه لري، کله ئې څوك بست بولي، ځینی ئې بیا کله د لښکرګاه په نامه یادوي او نور بیا کله کله لښکري بازار ورته وایي.

که څوك په دغو کسانو پسې ځراغ واخلي نو به ترهر نامه لاندې یوه خاصه ډله خلك ومومي، ځکه نو په ځینونقشو، کتابو او نورو لیکنو کښې کله دغه ښار بست، کله لښکرګاه او کله بیا لښکري بازار کښل شوی وی .

دغه راز د نومو ګډوډوالی، او بې ثباتي او هغه هم په لیکنو کښې دافکار و تیت و پرك والی راولي چې دوې اغیزې ښندي، یوه داچې که لوستونکی په واقعیت خبر دی نو ئې لیکلی خواتوري کوي، که ئې سرۀ ښکر ځني ورك دی او پدغه بېنظمۍ خبر نه وی نو

هغه لوستونکی داسی ګمان کوي چې دغه درې بیل ځایو نه دي یا داسې چې په درو بیلو زمانو کښې په بیلو نومو دغه یو ځای بلل شویدی . ددې لپاره چې له دغی نقیصې او عیبه ځخه مو دلمنې ځپلې پاك شوی وي نو زه غوښتنه کوم چې د تاریخ او نننیو غوښتنو په رڼا کښې د

پورتنیو درو نومو قول الخونه وڅیړل شي او نتیجه ئې چې په ټاکلی ډول سره به د یوه نوم اېښوونه وی، بیلو خبریدونکو او نورو مربوطه مؤسسوته وروړاندې شي چې به وروسته کښې ئې مراعات وکړی.

لومړی به زه پخپله پدغه برخه کښې څه ولیکم، ددې لپاره چې زما لیکنه معتبره او مؤثقه وي نو به اوی لاس د اسلام دائرة المعارف Encyclopedia of Islam ځخه کار واخلم چې دمرج سوډول تو ما بن ئې له ډیرو بیلو او مفصلو لیکنو ځخه یوه لنډیزه وړاندې کړیده .

بست په واقعیت کښې نن یو مېږ ښار دی چې د هلمند او ارغند (۱) درودو د ګډیدو په زاویه کښې پروت او تر ځپلو خاورو لاندې ښخ دی « ددغه ښار لومړنی آبادی او جوړښت فولکلوري قصې لري

خو واقعي زمانه ئې یا له تاریخه ځخه ورکه یا هغه تاریخ پخپله ورك دی. دغه د لومړنی بنیاد غوړېږی په موهغه مهال وخیږي چې داد کیالو جستې په پامه ئې د ابتدائي آثارو مخ ورلغ کړه شی.

عرب جیوګراف لیکوونکی ددی یادونه کوي چې بست یو لوی اقتصادی مرکز لاځه بلکه د بین النهرین او هندوستان ترمنځ تجارتي کړی وه .

دوی داهم کښلی دی چې په بست کښې ډیر علمي او ادبي فعالیتونه روان وه او ډیر پوهان ئې روزلي وه . دغه جیو ګرافران د بست میوه لرونکی اود خرماو ونی او ډیر انګوری باغونه یادوي چې اوس ئې البوشاکه لا نشته.

د پارتیانو په زمانه کښې لا بست موجودو ، ساسانیان اود زابلستان هپتالیان (ابدالیان ـ حبیبی) پر بست باندې جنګونه سره کړیدي.

په ۲۹ هجری کال چې ۵۰-۶۴۹ ع کال کېږی عبدالرحمن د ثمود زوی بست فتح کړ اود حضرت عثمان (رض) د خلافت جزء ئې وګرځاوه پداسې توګه چې پخپله ښار نیول شوی نه و خو مالیه ئې ځني اخیستنه .

(۱) اکثره داسې لیدل کیږي چې لیکلی وی دارغنداب رود ، مګر دغه تکرار دی ځکه چې ارغنداب ـ ارغنداو رود سره دی یعنی آب ـ رود دغه راز تکرار په نورو نومو کښې هم لیدل کیږی لکه دریای هریرود یا دمرغاب سیند .

د لومړنۍ هجري پېړۍ په دوهمه نیمائي کښې د مسلمانانو له خوا څخه بست پوره اوبو مخېږه ونیول شو، حتی له دغه ښاره څخه د شاوخوا ځایونو شهزادګانو (زنبیل شاهان) په مقابل کښې جنګي استفاده کېدله.

امویانو د بست د لرنۍ او ساتنې لپاره د دغه ښار په شاوخوا کښې څو جنګونه کړي دي. د عباسیانو په زمانه کښې عرب حکمرانان و بست ته لېږل شوي دي څو د سجستان (سیستان) یاغیان وکوټي، د پردیانو یا خارجیانو مخ ونیسي او د کابلستان له حکمرانانو سره خبرې اترې یا جګړه وکړي.

د بست له واقعاتو څخه چې مؤرخینو په خاص ډول سره ثبت کړي دي یو هم د ابن اشعث یاغي کېدنه ده چې وروسته د معن بن زائده شیباني له خوا څخه وکوټل شو، بخپله معن هم په ۱۵٦هـ ۷۷۳ع کال په بست کښې ووژل شوی دی.

یعقوبي کښلي دي چې د بست سیمې په دارائي کښې له خراسانه سره سیالي کول. د بست له کلاوو څخه چې نښې او آثار ئې تر اوسه پورې سته، د دغه ښار د جنګي او دفاعي ټینګوالي اهمیت ښکاره یږي.

د صفاریانو (۱) په زمانه کښې بست د یعقوب د لیث د زوی تر لاس لاندې ؤ. له دغه ځایه څخه ئې له ختیځو سلطنتو سره جنګونه کول. بدغه لړ کښې ئې کابل هم په ۲۵۷هـ ۸۷۱ع کال کښې ونیوه، کله چې به ئې وختیځو سیمو ته سفر کاوه هم به له بست څخه وردوانېده.

بستوالو د خراساني دربار له سامانیانو سره سخت جنګونه کړي دي، سامانیانو له ډېرې زمانې څخه زیار ایستی چې بدغه سیمه او ښار کښې منګولي ټینګې کي. دغه راز د بست مېړونه د بغداد د خلفاؤ له لښکرو سره جنګېدلي دي او ځانونه ئې د تل لپاره نه دي بایللي، څو دغه ؤ چې په ۳٦٦هـ ۹۷٦ع کال کښې ئې غزنوي سبکتګین کمبله ور ټوله کړه او د سیستان له مرکز زرنج څخه ئې روابط پرې کړه شول. تر دغه وروسته بست د غزنویانو فرعي مینه او ټاټوبی ؤ.

د محمود په امپراتورۍ کښې د بست وشمال ته یوه عسکري کلا جوړه شوه، په عفو وختو کښې البقدسي دغه د سپاهیانو کلا د العسکر په نامه ثبت کړیده. نورو عربي مؤرخینو او جیوګرافیه لیکونکو هم دغه راز العسکر یاده کړیده، مګر دغه پخواني العسکر بیا فارسي لیکونکي مؤرخین د لښکرګاه په نامه سره بولي.

څنګه چې لومړني مسعود د العسکر په جنوبي لاخ پوري په بله نوې کلا کښې د ځان لپاره د پاچهي قصر جوړ کړ چې له دغه وخته د غزنویانو فرعي یا ژمنی پایتخت وګرځیده. له دغه سره سم نو بست نور اداري مرکز نه بلکه یوازې یو تجارتي ښار ؤ چې سوداګر به ورتلل ځکه چې د عسکرو لپاره به لښکرګاه پوري ځینې دکانونه جوړ شوي دي نو ئې د هلمند اوسېدونکي تر اوسه پورې له دغه پلوه څخه بدغه نسبتاً مدني نامه سره لښکري بازار بولي.

په لښکرګاه کښې د غزنویانو لښکر پراته وه، دغو له یوې خوا څخه د بست اداري قدرت له منځه یوړ چې پخوا به ئې څه وخت وروسته تر نیوانې پورې پاڅون کاوه او خپله آزادي به ئې بېرته اخسته له بلې خوا څخه لښکرګاه د غزنوي امپراتورۍ ساتنه کوله، هم ئې غربي تیري شنډول او هم ئې بدغه سیمه کښې د ځانې قوت پروډېت واژه. په نتیجه کښې ئې ټول نیوالي وطنونه تر لاس لاندې ساتل. مثلاً سر بیره پر بست ئې غور، داور او زرنج تر لاس لاندې وه او هم ئې د سلجوقیانو ته په ٤٤١هـ (۱۰٤۹-۵۰ع) بدغه سیمه کښې ماته ورکړه ولې چې تر مخه ئې څو پلانو لهم ددغې اولجې د نیولو قصد کړی ؤ خو بر شا ټل شوي وه.

په ۵٤٤هـ (۱۱٤۹ع) کال کښې غوري علاءالدین بست او لښکرګاه وران ړول چې ځینې برخې ئې وتړیدلې، بست ته دوه ناوړان ورو نه رسیدې خو لښکرګاه له دغه وخته څخه مخ پر ځوړ او تنزل پېل او د په ۱۸ مخ کښې

---

(۱) له بست څخه نیږدې سل کیلومتره کښته، د درویشانو په بای کښې د هلمند پر ختیځه سهیلي غاړه باندې یو بل مړه ښار سته چه د برجسته قالبي نقشو کلالي لري او ما بل چېرې نه ده لیدلې، دغه کنډوالي او د ځرمه کلي ئې د ځایانو له خوا څخه د سپار په نامه یادیږي.

د ننګرهار نهر الیپرنه:     همراز ننګرهاری :

## وږمه

زړ ګیه! نوی خیال نوی فکرو کښی لټوه
د نوی ژوند ویډوته ـ پټ درڅونه ویښوه
چې وخیږی د خیال، غوټی زړه د ګټه حسرتونو
نسیمه! شین سهار کښی د ګلونه تڅوه
دمینی په دنیا کښی چې د رازو نازمحفل وی
محبوبی! دي صحنه کښی په اشنا نظر کوه
نظام د کائناتو کښی هم بلشانتی غوغاده
د ژوند، شور او غوغا والی ـ ژوندون اوس بدلوه
دازوږ، دا ته ښکاریږی چې د نوی ژوند تحفه ده
ژلمیه! باغچه! باغچه! خپل ارزو پوره کوه
هرڅه دی ښکلی شوی دقدرت په منظرو کښی
نسیمه! دا وږمې دښت او دغو کی کر څوه
همراز! ده دا تحفه کړه وړاندی پیغلو او ځلمو ته
دژوند خوږو نغمو ته ځوان خیالونه خوښوه

د نورو ادب:     دهایږه اثر:

## هرڅای ځو رلم !

ځینو به خپل عشق کښی وځوړ دولم،
ځینو به کینه ځمازړه آزار کړی،
دعشق به زهر وی ځما دودی ولیله.
چا ځماد، میو به پیاله کښی د کینی
زهر وا چول.
مګر لههر چانه ځه هغه چا ته پر
وځوردولم چې نه یې کینه دا سره
پیدا شوه او نه مینه.

### ای دلدار ه :

ځما تر انی قولی به زهر ولی لی دی،
ولی به نه وی لیلی، آیا تاځماد
ژوند به جام کی زهر توی نه کړه.
ځما ترانی قولی به زهر ولی لی دی
ولی به نه وی لیلی، آیا ځه په خپل
زړه کښی به ځر دوځمادان نه لرم؟
آیا له دغو قولو ماد انونه علاوه
ته ځما به زړه کښی ځای نه لری؟
ای ځماد لداره!



تهیه کوونکی انهیوال

دسلکیسون د مجله نه ژباړه:

## څله؟

څله ځینی کسان ځما سره مینه نه لری؟
زه باران او د ځنګله لطافت خوښ ارم.
او اوریځې به نیلی آسمان کښی.
ښکلی مرغی...
ښایستی پیشانی...
وړوکی سپیان..
مست او ځپاند رودونه چې به لمر کی ځلیږی،
دسپرلی په وخت کښی دا دغوان ګلونه
پسونه چې په شنه دښت کښی یو به بل پسی منډی وهی.
د شکر سپینو نو خوږه خوند.
او ډیری ښکلی جامی او دنیاوی نو شوخی ستر ګی.
او شیدی خوږو ونکی کوچنیان.
دا څله ځینی کسان ځما سره مینه نه لری؟
حاجی محمد (ځارو)

## څارو، وائی ګټه بنه ده
### چې وی ګټه

چې د نام په غوښو جوړ دی ها دیوال
خدای دی نکړی د خاوند کور په سمبال
چې د کونډو یتیمانو او ښکی توی کړی
خدای دی دی د هم ځنګوی دغم په قال
پر غریبو چې یې من پوړدي تمن کړ
شی کړه دي به زهر وخوله دجوال
دمزدور په مزدوری چې تندی تر یو وی
کی دلوړی مسری اته تنه عیال
(څارو) وائی ګټه بنه ده چې وی ګټه
نه دچیبه څه بهغلا د انهیوال

عبدالله بختاني:

# دشاعر مسلک

زه نه خان یم نه ملک یم نه با دار یم
دخوارانو غریبانو خدمتگار یم
باداری او غلامي مې نه ده خوښه
دظلم قرن ظلمې پسې بیدار یم
پسې نه غواړم وطن نه خرڅوم
دادب او دخدمت سرمایه دار یم
دا وطن دالوېه خاوره ګڼم خپله
هسې نه چې کوم ورکوټی زمیندار یم
نه مې سرچا ته ټیټ شوی نه مې سترګې
خود په هسکه غاړه ګرځم کلا نکار یم
مالیدلی د جهان تودې سړې دي
له چندې ځنې وتلی دروز ګار یم
زه چې ځان او جهان پېژنم نو ځکه
خودشناسه، حق پرسته او خوددار یم
آزمویلی به څوواره زمانې یم
د کام ځکې امتحان ته لا تیار یم
په میدان دننګ او نام کې بختاني یه!
شکر دا چې پیغور نه یم افتخار یم

دنورو ادب: ژباړه:

# قبر او ګل

قبر سره ګل ته وویل!
ای دعاشقانو ګله!
هغه داو ښکو څاڅکي چې هره شپه د چرخي او سحر
له سترګو ستا په ښکلي بڼه راتوئیږي ته ورې څه کوې؟
ګل وویل:
لومړی ته راته ووایه!
هغه چې ته ای هر وخت خپلې ګیډې ته ننباسې څه ورسره
کوې؟
قبر وویل:
ګله! زه له هرې ارواه چې ما ته یې سپارلې پر ښته
جوړه وم او آسمان ته یې لیږم.
ګل وویل:
قبره! زه دغه اوښکې ورو ورو دعطر او عسلو په
صورت تبدیلوم او خلکو ته یې ورکوم.

(هوګو)

سلیمان لایق: نوی شعر:

# دشګو کور

څه دژوند دماشومانو آرزو؟
چې سپېږو خاورو کې غورسې وهي
له نشو شګو مانۍ جوړوي
ګټې دا پاسې او ستمې وهي

✡ ✡ ✡

دغه دشګو ناتمام کورونه
توان دسیلاو او زلزلو نه لري
دا تورې خاورې او دا فاني باغونه
ارزښت دجنګ او دعوو نه لري

✡ ✡ ✡

ای دکوځو خوږوږو ملګرو!
راځئ چې نوي لوبه ساز کړو
دغه شګلن کورونه ونړوو
ځان له دې لوبو بې نیاز کړو

✡ ✡ ✡

راځئ چې هیلې څه رنګینې کړو
راځئ چې نوې ترانې ووایو
د زمانې په دې زړو غوږو کښې
دژوندون نوي افسانې ووایو

✡ ✡ ✡

مګر ای شګلن کورو ملګرو
له دې ویرېږم چې ناښاد به شئ
د زمانې د توفانــــــو مخې تــه
که نوې فکر ونه کړئ برباد شئ

# دی راغی

دی راغی زما ځنګ ته کښېناست مګر زه ویښه نه شوم، آه هغه خوب څه بدمرغه و زما لپاره ذلت و.
دی راغی هغه وخت چې شپه آرامه او چپه چوپتیا وه، ده په لاس کښې بربط و چې په خوږو نغمو ئې زما خوب وناز اوه.
افسوس زما ټولې شپې ولې داسې ضایع تیرېږي.
آه زه ولې تل د هغه چا دیدن نه برخمن یم چې د هغه په ساه زما خوب خوږ او خوندور دی.

(ټاګور)

د علاقو او سیمو پېژندنه:

# درۀ نور

غلام فاروق «انورزی»:

د درۀ نور سیمه د کندهار ولایت د خاکریز د ولسوالۍ د نیش په علاقدارۍ پورې اړه لري او د کندهار د ولایت د شمال لوېدیځ په ۷۰ کیلومترۍ کې د سمسورو غرونو په منځ کې پرته ده چې لوېدیځ لورته یې د شاه ولي کوټ د کوتل بادام غرنۍ سیمه او جنوب لوېدیځ خواته یې د شاه مقصود د غرونو لړۍ او د باج لوی کوتل واقع دی د شمال لورته یې د درۀ نور وادي، انورآباد او نور کلي پراته دي.

درۀ نور لکه چې د نوم څخه یې څرګندېږي رښتیا هم دغه غرنۍ سیمه د طبیعت د ښکلا په خاطر نور لري. دا یوه ژوره او سمسوره دره ده چې لوی غرونه چارچاپېره پر را ګېر څېدلي دي.

**اوبه او هوائي:** دا دره د یولې سمسورو شیلو او هسکو غرو په منځ کې د جنوب نه د شمال په لور پرته ده او شاوخوا یې د کوچه مار په ډول غرونه را تاو شوي دي، دا غرونه د روزګان او د شاه مقصود د غرونو لړۍ دي چې زیاتره غرونه یې سمسور او په طبیعي ځنګلو کې پټ دي. د دغه درې د اوبو سر چینه د اولیات بابا د غره څخه ده او د دغې درې د اوبو سره د یوالې لوېږو او کوچنیو چینو نورې اوبه هم ګډېږي او د ږېرو او لاښو په منځ کې بهېږي چې په ځینو ځایو کې د لوړو لاښو څخه مخ پر ښیوه د شرشرې په ډول پر لوېږو ګاڼو او تیږو باندې توئېږي. کله کله چې باد ورسره ملګری شي نو د اوبو د شرهارې او ږوږ هیبتناکه آواز له هرې ګوښې څخه اورېدل کېږي.

د درې منځ او شاوخوا لوړې او ژورې د غره د بادامو په شنو ونو پټې دي، د درې د چینو اوبه چې په کانې ځایونو کې تېرېږي خوږې روڼې او یخې دي.

بدغه سیمه کې د ژمي په موسم کې هوا سړه وي او واوره پکښې اوري او د دوبي په موسم کې برابره هوا لري، کله کله چې کال آباد وي او د پسرلي په موسم کې ښه باران نو نه وشي نو د شاوخوا غرونو او شیلو څخه د باران او ویلو له امله اوبه زیاتېږي او د پسرلي په موسم کې زورور سیلاوونه هم راځي د درې په منځ کې د اوبو څخه کوچني او لوی ډنډونه جوړ شویدي چې په هغو کې ماهیان هم پیدا کېږي.

**د غرو پیداوار:** د دغې سیمې په غرو کې د غرو د ونو بادام او خنجک چې موږ ورته شنې وایو د غره انځر او زیره چې اقتصادي ارزښت لري، شکمباره، سربښ، خاکشیر، ګنجه، د ژړګي کنډودي، ګنتي، نغوره او ښې پیدا کېږي.

**کانونه:** دغه دره پر دوو برخو وېشل شوېده چې څه ناڅه د موېشت ببچه د غرو په منځ کې تاو شوېده، د درې لوېږې برخه یې چې ختیځ لورته یې د کوه غټو د سپینو ږېرو شیله او جنوب لوېدیځې لورته یې د ولګي کوتل واقع شویدی د وچې درې په نامه یادېږي او بدغه سیمه کې کانونه شته، هغه وخت چې د کندهار په ولایت کې لومړی ځل د «موریسن» کمپنۍ د کجکي او د دهلې د بندونو د جوړولو کار شروع کی نو د کجکي د سړک څخه یې د دغې سیمې د کانو د پلټنې د پاره یوه لار جوړه کړه، په دغه سیمه کې د اوسپنې او سرپو لوی لوی کانونه شته چې سربېره د دغه سیمې او شاوخوا خلک په ځانګړي ډول استحصالوي، بیاذی لال هم بدغه سیمه کې پیدا کېږي. د امریکا یې کان پېژندونکو را ورو وروسته شوروي کان پېژندونکي هم دغې سیمې ته د کانو او صنایعو د وزارت د ګرځنده لو سره راغلي او څو ځلې یې بدغه سیمه کې د کانو په

...خه کښې پلټنې کېږي او وېلی
...دي چې په دغه سيمه کښې د مسو
...کانو امکان هم ليدل کېږي.

## د لرغونو آثارو نښې:

...د درې نور په سيمه کښې زموږ د
...ران هېواد د پخوانی تمدن ځينې
...ی ليدل کېږي او له هغو څخه
...سی څرګندېږي چې دغې سيمې
...وخت زموږ دهېواد د پرم څخه
...ی مدنيت تير کړيدی په درې
...ر کښې د ډېري پخوا زمانې ښځې
...ښتی چې د او سنيو پخو ځښتو په
...سبت ډېر تو پير لري پيدا کېږي
...هم په ځينو سيمو کښې خاورين
...لوښی د کيندلو ياد کړځي د پاره
...شاه ومحکو د آبادولو په وخت
...کښې د خاورو څخه جوړ تلي دي
...دغه لې کښې تير کال د درې نور په
...کلي کښې په کوم ځای کښې د دغه
...کلي يو مخور حاجی ګل «ايوبی»
...ځپله کروندې کښې د ودانی
...پاره د تاداو د کيندلو په وخت
...کښې يو خاورين لوښی چې سرئی
...لی ؤ ومونده، کله چې حاجی
...ګل «ايوبی» د خلکو په مخکښې
...دغه خاورين لوښی سرلغ کې
...څرګنده شوه چې پدغه لوښی کښې
...پخوانی سکې دي نو دغه منور او
...وطندوست ځوان سمدستي دغه
...خاورين لوښی چې ۲۹٦ دانې پخوانی
...سکې پکښې دي دخپلې مربوطې
...ولسوالی په سلسله د کندهار د
...ولايت مقام ته د تحفې په توګه
...ور کړی چې ورو سته بيا د ولايت
...د مقام د هدايت په اثر دغه سکې د

هيئت په مخکښې د کندهار د
اطلاعاتو او کلتور لوی مديريت
موزيم ته وسپارل شوې چې وروسته
بيا د کندهار د موزيم له خوا دغه
سکې د اطلاعاتو او کلتور د وزارت
محترم مقام او د موزيمونو لوی
مديريت ته واستول شوې تر څو چې
د دغو سکو تاريخ او دول معلوم
کړي. د موزيمونو لوی مديريت
د خبلو ځېړنو په نتيجه کښې د دغو
سکو نوعيت معلوم کړی وروسته
تر هغه څرګنده شوه چې دغو سکو
د ګران هېواد د غوري او غزنوي
پاچاهانو په دوره پورې اړه
درلوده.

## د لويو شخصيتونو قبرونه او زيارتونه:

په درې نور کښې د لويو روحانی او اجتماعی
شخصيتو زيارتونه هم شته چې د
هغو د ډلې څخه يو هم لوی شيخ او
د اجتماعی لوړ شخصيت خاوند
(اکو نيکه) زيارت دی چې د
نوموړي روحانی او مجاهد شخص
نوم او يادونه د دراني تيمورشاه
په کتاب کښې شوېده.

دوهم لوړ او مجاهد شخصيت
چې د روحانی ستر مقام خاوند ؤ
د ملا عزت الله آخند زيارت دی چې
نوموړی عالم د اعليحضرت
تيمور شاه د مشهور وزير شاه
ولی خان باميزي د نيکه ګانو
څخه دی.

## ترافيکی چاري:

په دې وروستيو کلو کښې د حکومت د
انکشافی پلانونو له مخې د روزګان د
ولايت نوی سړک چې په درې نور کې
تير شوېدی د روزګان او کندهار
د ولايتونو ترمنځ دغه نوی سړک
د پخوانی لاری په نسبت ٤٥ کيلو
متره لنډ دی. پخوانی سړک به د
ژمي او پسرلي په موسم کښې د
بارانو د اوريدلو په نسبت د
ترافيکو د تګ او راتګ لپاره
زيات مشکلات پيښول د لاري د
خرابي له امله به هر وخت موټرونه
چپه کيدل چې خلکو ته به ئې ځانی
او مالی زياتونه رسول. د کندهار
او روزګان د ولايت نوی سړک
چې په درې نور کښې تيرېږي او س
ئې کار د کندهار د ولايت د فوائد
عامې د مديريت له خوا د کار د
قواؤ په مرسته جاري دی چې د کار
زياته برخه ئې سرته رسيدلې او
اوس ترافيک په آسانی سره پر دغه
لار تګ او راتګ کوي، نوی
سړک چې د ارغنداو د سيمې څخه
تر درې نور پورې غزول شويدی د
ارغنداو څخه تر درې نور پورې
د دغه سړک خنډيځه خوا د شاه ولی
کوټ په ولسوالی پورې اړه لري
او د دغه سړک لوېديځه خوا بيا د
خاکريز په ولسوالی پورې تړلی
ده چې د دغه سړک جوړيدل د نوموړو
دوو سيمو د خلکو د اجتماعی ژوند
لپاره زيات اقتصادي ارزښت لري.

## د طبيعی ځنګلونو ساتنه:

د درې نور د دړې د شا وخوا غرو د
طبيعی ځنګلو د ساتنې او څارنې
په باب موږ د حکومت او کرهڼې
او اوبو لګولو د وزارت پاملرنه

(نور په ۲۹ مخ کښې)

(د ۱۳۵ مخ پاته)

# بست که لښکرګاه

وکړي. که څه هم دغوري حکمرانانو له خوا څخه ئې قصرونه بیرته جوړ شول چې بڅپله دوی او وروسته بیا د خوارزم شاهانو حکمرانان پکښې اوسیدل.

سره له دې، ښار بیاهم ولاړ او په ډول ډول جنګونو کښې چې وروسته پېښې شول د پناه ګاه او د غوري شاهانو د شهیر ل کیږي د ښار وروستني ودانۍ او موجودیت پر تورو شواهدو سربیره دیو شمیر وژل سوو کسانو د شنختو (دهډوکو) په وسیله ثابتیږي. دغه کسان د شپږمې هجري (دوولسمې عیسوي) پېړۍ په پای او د اوومې هجري دیارلسمې عیسوي پېړۍ په اوومې لسیزه کښې وژل شوي دي. ددوی لقبونه د مړو کسانو دي چې بیله شکه اوسنۍ څخه ئې قدرت په لاس کښې و. مګر په اوومې سرکي دبلې قوت ور څخه و او په وروسته کښې دنیا ئې او سیاسي چې بوازي پر وطني او ملي اساس ولاړ وو.

د چنګیز د مغلو تاړاک چې په ۶۱۸ هجري «۱۲۲۱ ع» کښې او د تیمور چپاوونه د اتمې هجري (۱۴ عیسوي) پېړۍ په پای کښې د بست سیمه او تمدن ویران کې. د اوړمالي تشکیلات ویجاړ او د کرهڼې مځکې ایله او مترو کې سو لې. سره له دغه لا بیا هم مغولو بڅپله د ښار له کلا څخه د پاډس په مقابل کښې استفاده کوله څو هغه وو چې بالاخره نادرافشار په ۱۷۳۸ ع کښې کنډوال او له څنې جوړه کړه او برمخ ئې ونیوه.

کله چې مورخین د بست یادونه کوي مطلب ئې د بست ښارنه بلکه دغه ټول شاوخوا څنې مرادوي دغه دهلمند پرغاړه غاړه یوه لویه سلسله آبادۍ وي چې او ږدوالی ئې نژدې اوو کیلومترو ته رسیدی او پسورئې په څینو برخو کښې دوه کیلومتره کیدی. لښکرګاه ددغې سلسلې ودانیو په ډله کښې شمالي وروستنۍ ودانۍ آبادي وه. لښکرګاه په بست کښې دننه یوه عسکري کلاوه لکه څن چې هره چوڼۍ دغه دا ډول موقف او موقعیت لري. په هره توګه، بست عبارت بوازې له مرکزي ماڼۍ څخه نه بلکه ټول نورو شاوخوا څنې ولایت لا په دغه نامه یادیدی.

له پورتنۍ بیانه څخه په ښانۍ چې ښاغلو لوستونکوته د بست او لښکرګاه ارغونوالی، اصالت او ماهیت په مستقیم او غیرمستقیم ډول سره ور ځرګند شوي وي خو سره له هغه ئې هم لاندې د صفاتو او ممیزاتو یوه لنډه مقایسه او مقابله وړاندې کیږي چې ددوی په صریحه بیژندنه کښې به ګونده اغیزه وښندي.

## بست:

۱- بست یو پرېخوانی ښار دی چې تاریخ ئې تر اسلام په د مخه زمانو پورې اړه لري، او حتی ودې سي چې د قبل التاریخ دورې وي.

۲- د بست ښار دهلمند یانو د تمدن او رسم ورواج نښه او ددوي د اقتصادي او اجتماعي شرایطو محصول ؤ.

۳- د بست د ښاري ژوند او نه له مخې څخه د تمدن ښکارندوی او مدنیت بڅپله د برمختګ او صلح نخښه ده:

۴- څینو پخوانیو عالمانو او ادیبانو خپل تخلصونه بستي یا البستي ایښي یا ئې لقبونه وه په هره توګه خو دوی په دغه نازیدل.

۵- بست یو تاریخي ټاکلی نوم دی چې دغه یو ساده عمومي بڼه لري.

## لښکرګاه:

الف: لښکرګاه یوه عسکري مستوګنځی وه چې په اسلامي لومړی نیو پیړیو کښې غزنوي امپراتورد محمود جوړه کړه.

ب: لښکرګاه د غزنویانو د عظمت او قوت یا تسلط او حکمرانۍ ښکارندوی او هم د غزنویانو (نه دهلمند یانو) د امپراطورۍ محصول وه.

ج: لښکرګاه د زور، جبر، اقتدار، جنګ او وینې توبولو نخښه او ښکارندوې ده چه د آزادۍ او برمختګ مخنیوی کوي.

د: مګر او سنی رسیدلی کسان چې د هلمند پرغاړه په دغه کوچنی ښار کښې او سیږي هیڅکله نه غواړي چې لښکرګاه یې یا لښکرګایان دي و بلل شي.

ه: مقابل ئې مثلث نمونه دی یعنې دالمعسکر، لښکرګاه او لښکري بازار په درونومو یادیږي. نور په ۲۰ مخ کې

د ریډرز ډایجست څخه:

د فهمیې بابې ژباړه:

# څرنګه د غوماشو څخه

# ځان وساتو

پسله کلونو څیړنو څخه دا ثابته شوه چې غوماشه د ۲٤ نارو غیو نقلونکی ده لکه ژېړه تبه، ملاریا او نور، حشري پېژندونکي د غوماشو په باب دا سې معلومات خپروي چې زموږ ډېر کسان دهغه دا وریدو ارزوارې چې څرنګه د غوماشو د خوړلو څخه ځان وژغورو که ناسو غواړئ چې د غوماشو د خوړلو څخه بچ وسئ

کښې ځان وساتي په بازار کښې ډېرې داسې دواوې موجودې دي چې غوماشې دفعه کوي، اما کله که تاسې د کوره څخه لیرې په مزرعو او دښتو کښې چې د غوماشو ضد کیمیاوي مواد درسره موجود نه وي دا سې یو مشکل سره مخامخ شی

د دغه تکلیف په مقابل کښې تاسې څه کوئ، فکر وکړئ چې ساینس پوهانو به دې باره کښې څه په لاس راوړي دي ؟

غوماشه هم لکه نور حشرات نر او ماده لري، د غوماشو نر ان قطعاً سړی نه خوري ایکن ډېر ځله د غوماشو د ډېرو اقسامو څخه ښځې غوماشې ددې د پاره چې پرمګیو راشي سړی خوري او وینه ئې زبېښي. د دغه اړتیا د پوره کولو د پاره

دوی په عجیبه محرمانه ډول سره چې دغه نښه ستاسو د وجود څخه نشئت کوي تاسو پیدا کوي د دغې نښې پېژندول یو چم دی.

ساینس پوهانو په تجربو سره دا معلومه کړېده چې غوماشې د هغه خلکو پوستونه خوښوي او خوري ئې چې د هغو د وجود د حرارت درجه تر ۹۰ فرانهیټ درجو لوړه وي د انسانانو د وجود د حرارت درجه فرق کوي په متوسط ډول سره

د (۸۷ څخه تر ۹۵ درجو پورې محدوده کښې وي) دغه د انسانانو د وجود د حرارت د درجې اختلاف دا مطلب څرګندوي چې ددوی پ شپو کښې په بعضو محافلو او غونډو کښې یو عده خلك په داسې حال کښې چې د محفل نور خلك غوماشې خوري دوی وایي د تعجب وړ ده چې موږ قطعاً غوماشې نه خوري.

د حشرات پېژندونکو د څېړنو نتایج: که سړی په هر ولسو دقیقو کښې په سړو اوبو غسل وکړي دا د وجود د حرارت درجه کښته راولي او دا رنګه که سړی الکولي مشروبات ونه خوري دا هم د وجود د حرارت درجه کښته ساتي او دغه

رنګه که خفیف ورزش ونه کړي البته دا هم د وجود د حرارت درجه کښته ساتي اما برعکس که سړی دومره ډېر ورزش وکړي چې بدن ئې خولې وکړي، بدغه صورت څرنګه چې غوماشې د خولو د بوی څخه بد وړې پر سړي نه کښېني، که چېرې تاسو د غوماشو په ځای کښې استوګنه لرئ خام رنګه کالي اغوندئ ځکه

غوماشې لکه نور حشرات بعضې رنګونه تر بعضې رنګو خوښوي نور، تېز سور او آبي رنګونه د غوماشو ډېر اقسام ور جلبوي، ژړ او خام شین رنګ هغه رنګونه دي چې د دوی ډېر کم التفات ور ته کېږي.

دا معلومه سوېده چې کوالکس پېپن (مروجې خانګي غوماشې) ډوله غوماشې تر خوړلو دمخه پر سړي را ټولېږي او تر انسانانو مرغان ډېر خوري (غوماشې مرغان په هغو ځایو چې په هغو پښې ئې

نسې خوړلای بلکه د وی پر پښو او د مشو کو په اخر کښې خوري) د دغو معلوماتو په ملاحظه کله چې

دغه د بڼکې حشره تاسو ته د رځی که مو په شاوخوا کښې مرغه اویا کوتره وي هغه ته نژدې کښېنئ

دا موهم باید په فکر کښې وي چې د غوماشو بعضې اقسام غواړي تر هرشي خوښوي.

کاربن ډای اکسایډ چې موږ ئې د تنفس په وخت کښې تر خولې راباسو د غوماشو د پاره

ښه لار ښوونه کوي، عمیق تنفس ونه که په زیاوږ وي او یا تاریکه نور په ۲۱ مخ کښې

«۱۸۵ مخ پاته»

# بست که لښکر گاه

۶ـ بست یو اسم بامسمی دی، ځکه ئې مصداق یو لوی ښار دی چې د مدنیت مرکز شمیرل کیدی. خو اوس به هم دغه ښار نوم وی او مدنی چارې به له دغه ځایه څخه پرورښت کوې.

لنډه ئې دا چې بست یو مدنی نوم او لښکرگاه یو مدنی نوم نه دی.

و: ننني لښکرگاه یو اسم بې مسمی دی ځکه اوس هو دی لښکری نشته د لښکرگاه یا المسکر ځکه ئې مصداق یوه د لښکر و یا عسکری کلاوه. کله چې ئې ایز ځه بازاری جنبه اختیار کړه نو سمدلاسه لښکری بازار و بلل شو. یعنی یو بازار چې د لښکر و یا عسکرو لپاره وی لکه ننني اردو بازار.

---

نو د قضاوت ښاغلو لوستونکو ته وړاندې کوم چې د دې ښه کوچنوټی ښار چې د هلمند پرختیځه غاړه ودان شوی دی او په لیکو کښې به (کې لو به یې لار پرسر په دا) د دا زه بست ترمرکزی قصره بودی ورو وړ دسی په څه نامه و بولی: بست که لښکرگاه ؟؟؟

---

( د ۱۱ مخ پاته )

# د مزار شریف د روضې...

ملحقات او مسجد جامع چې په خاص طرز او اسلوب سره کاشی کاری شوی او د قرآن شریف آیاتونه او تاریخی لوحې پر لیکل شوی دی د یو عالم جلال او عظمت سره ښکاریږی چې د سړی زړه نه غواړی چې بوکړی هم ځنې لیرې شی.

د روضې شریفې ختیځ بلو ته یوه لوبه او پراخه سمیټی صوفه (تنګاچه) سته چې د کوترو د پاره جوړه شوې ده پر دغه تنګاچه او د هغې پرشاوخوا باندې په زرهاؤ کوتری ناستې دی چې ځکه گرسره نه معلومیږی

دا ټولی کوتری تکی سپینې دی او بل رنګ کوتری په دی کښې گرسره نه ښکاریږی د دغې تنګاچې اړخ ته دلرګیو یو کوچنی دوکان دی چې ډدن خرڅوی. هرسړی وار د وار ده دغه دوکان ته ورځی او یو څه ډدن رانیسی.

ور وسته تنګاچې ته ورنږدې کیږی او کوترو ته ډدن پاشی، کوتری په یوه بلا بر دغه سړی باندې هجوم راوړی او پرسر اوږو او لاسو باندې ئې کښینی چې دا د کوترو ننداره هم یو خاص کیفیت لري او هرسړی

یو وار ضرور د دغې ننداری ته ورځی او خوند ځنی اخلی. ادا کوتری بلکل ډیری حتی په بازار، کوڅو، او کورو کښې لیدل کیږی د مزار شریف په مندوئی کی چې هره ورځ غنم، اوربشې، جواری او وریجې خرڅیږی د هری

کوڅې په ښاو خوا باندې د غه کوتری ناستې دی او د غو شیانو څخه خوراک کوی، په ټوله ښار کې هیڅوک د هیڅ شی څخه د روضې شریفې کوتری نه منع کوی او نه د دغو کوترو ښکار څوک کوی نو دا کوتری په ډیره آزادی سره گرځی او لوږی ځیږی او څکروته وهی حتی د ښار د باندې تر ډیر و لیرو ځایو پورې ځی او بیرته راځی، د دغو کوترو اوصاف دا دی چې هیڅکله د بل جنس کوترو سره نه یو ځای کیږی یعنی خپل نسل نه بدلوی نو ځکه ټولی کوتری سپینې، کوچنی او د یوه جنسه څخه وی، په دوی کښې بل راز کوتره بلکل نه لیدل کیږی لکه د مخه چې مو وویل دا کوتری د مزار شریف د ښار د باندې تر لیرو ځایو پورې په سیلو سیلو الوزی که

چیرې کومه صحرائې کوتره یا اجنبی کوتره چې د دوی د جنس څخه نه وی او دوی ئې و وینی چې ښار ته راځی په کټ هغه بیگانه کوتره بیرته شړی چې ښار ته را نه سی نو په دغه نسبت د روضې شریفې ټولی کوتری د یوه جنس څخه دی او بلکل بل رنګه او بل جنس کوتره نه پکښې لیدل کیږی.

د دغو کوترو د استوګنې لپاره د روضې شریفې د احاطې د ختیځ بلو د دروازی ته نږدې یوه لوبه کوتر خانه د مناری په شان جوړه شوې چې د دی هلته هګی اچوی او چیچان باسی نو دی کوتری چې د هګی وخت ئې نه دی په نورو سرا یو او کورو کښې ژوند کوی.

(۳۰ مخ)

(د ۱۹ مخ پاتې)

# څرنګه د غوماشو څخه...

غوماشې د اجلبوي دا چې غوماشې سړي ته ډېر برمخ خوري دغه مطلب څرګندوي، چې دا ده چې سړی باید په ډېر شدت او قهر غوماشې د ځانه وشړي ځکه ډېر فعالیت په نتیجه کښې د سړي تنفس او د حرارت درجه

لوړېږي. که د خوب په وخت کښې د غوماشې د بڼکې د لاسه خوب نسوای کولای پداسې حال کښې چې هغه معلومولای هم نسي چې د اطاق په کمه برخه کښې ده نو ته

داده چې دویکښې مو برځان دا کش کړئ او آرام استراحت وکړئ.

ډېر کال دوبي ما دغه کول سهار په مې دوینو ډکې غوماشې پر جالې باندې لیدلې، زه به ئې نه ومه خوړلی مګر زما سپي به ځان ګراوه ددې څخه دا معلومیده چې پر سپي ئې حمله کړې وه.

غوماشې د ګلانو شیره، د میوو او په او شیرینې هم خوري. علاوه پر دې دا هم معلومه سوې ده چې ایڅ‌بز- اجپټی (غوماشه چې د ژېړې تبې ناقله ده) ځوله غوماشې

ترڅخي نارینه ته ترجیح ورکوي. البته دغه حصه د ښځو او نجونو د پاره په معلومات ګېدلای شي که چېرې نجونې او ښځې د دغه ډول غوماشو د ښه‌هادي او خوړلو څخه ځان ساتي نارینه ته دې نژدې کښېني.

که تاسو ته د غوماشو جدي مشکل پیښ وي د دم په زمزمه سره د دوی تولیدي دوره خرابه کړي.

د یوه علت له مخې په دوبي کښې ما ښام ترغوماشي پر باد پناه لوړ وځایو لکه پر چونه د دوخنو بر تنو او نورو دا و تلو شیانو کښېني.

مارټن بیټ د امریکا د میشیګن د پوهنتون حشره پېژندونکی د هم دس په متوسط زمزمه سره د نورو غوماشو سیل سره پاشانه کړي او د دوی د سیل ساختمان

ئې ورخراب کړي او بر ځان ئې دا ټولې کړېدې او همدغه ډول که ډېرو نرانو غوماشو ته ډېرو تنګو کش سوو نارو د وهلو په زمزمه سره ئې بازي ورکړي او دوی ئې د ژوند د اصلي کاره څخه منحرفې کړېدي.

سره د دغه پیاهم د دغه امکان شته چې غوماشې دې سړي وخوري، څه پېښېږي که غوماشې سړی وخوري، دوو نفرو حشره پېژندونکو «ډبلیو لم سټن» او «ا د ګودين»

پداسې حال کښې چې غوماشې د چونګښې په ښه نېښ (شنهك) لګاوه دوره پېښ په ذریعه ورته کتل، کله چې د غوماشې شنهك د چونګښې پوست ته ننووت د وینې د

رګ به پیدا کولو پسې ګوډ او تاو شو، ترماچو او انساچو چې او به ئې د دلودې تیرسو کله چې د وینو رګ ته ورسیدي شنهك د خپل اوږدوالي په ځلرمه دا تاوسو پیا غوماشې د نس د پمپ په ذریعه د وینو په

ز پیښلو پیل وکړ او د خپل وزن دو چنده وینه ئې دا وز پیښل کله چې غوماشه د وینو څخه سوه د هغې د نس پمپ ودریدی غوماشې په شدت سره شنهك د چونګښې د پښې څخه دا وایستی.

لوېاغوماشه د خپل فعال او متوسط ۱۷ تر ۳۵ ورځې ژوند په موده کښې دوې پاردې ورځې وروسته پو وار د خوښې د پاره نیښ وهلو او وینو څښلو ته ځي.

هر وخت چې غوماشه سړی خوري یو اندازه مواد د هغه وجود ته ورننږدي یقوي چې د دغه موادو له کبله هغه ځای پارسوب کوي دا نه غوندې معلومېږي او کا کوي.

وجود د غوماشې د خوړلو په مقابل کښې دوه مهم د تخریش عکس العملونه ښکاره کوي: فوري عکس العمل چې سمدستي پسله خوړلو پېښېږي او ځنډنی

عکس العمل چې یوه او یا پنځه ورځې وروسته شروع کېږي.

کوچنیان چې د مخه غوماشې نه وي خوړلي ترڅو چې ئې غوماشې خوړلي نه وي هیڅ عکس العمل نه ښکاره کوي په ابتدا کښې دوی ځنډنی او وروسته دواړه ځوله عکس العملونه ښکاره کوي.

هغه خلك چې غوماشې ئې ډېر خوړلي نه غوماشو د خوړلو په مقابل کښې هیڅ عکس العمل نه ښکاره کوي دغه کسان بالاخره د غوماشو د خوړلو د تخریش په مقابل

کښې هیڅ د تخریش عکس العمل نه ښکاره کوي دغه کسان بالاخره دغوماشو د خوړلو د تخریش په مقابل کښې معافیت پیدا کوي. داسې خلک قول دوبي په ځنګلو کښې ګرځي لیکن دغوماشو دخوړلو احساس هم نه کوي.

نن ورځ د غوماشو دخوړلو د تخریش پرضد پیچکاري سته که سړی هغه تطبیق کړي هغه ته د تخریش پرضد معافیت ورکوي چې البته دغه پیچکاري دغوماشو

د ځینو ډولو په مقابل کښې تاثیر لري لیکن د بعضو په مقابل کښې نتیجه نه ورکوي.

په نړۍ کښې ۲۴۲۶ ډوله پیژندل شوي غوماشي موجود دي.

تیر کال د فروري په میاشت یوې لیکوالې ښځې چې د ایډېز ډوله غوماشو په مقابل کښې معافیت درلود بنکاک ته په سفر ولاړه، ځکه چې هلته دې د بنکاک

غوماشو دخوړلو پرضد معافیت نه درلود د تداوي دپاره ډاکتر ته مجبوره شوه.

غوماشې د خپل ژوند لاره او پیوپا د مراحلو د تکمیل دپاره واوبو ته احتیاج لري. دغوماشو ډېر ډولونه په حوضو، ولاړو اوبو او د لو کښې هګۍ اچوي ځینې ډولونه ئې په هغه اوبو کښې چې لږ لږ د ځمکې پرمخ

ډېر شوي وي او یا هغه د باران اوبه چې په منګیو، ټیمانو او د بلبو کښې ټولې شوي وي هګۍ اچوي، د بلې خوا د

تودو سیمو غوماشي د باران په اوبو کې چې د درختو په تنه کښې جمع شوي وي هګۍ اچوي، په تودو سیمو کښې د

هغو خلکو دپاره چې د غوماشو څخه په بیره کښې وي که لوړ ځای ته وخیژي دغوماشو څخه نجات پیدا کولای شي.

دمثال په توګه دمبلغینو ډلې څخه یوسړي چې «برنارډ» نومیده په تودو سیمو کښې ئې د خپلو مشاهداتو په لړ کښې دا معلومات حاصل کړ چې د تودې سیمې ځنګلي غوماشې د ځمکې پرسر په خاورو کښې ژوند کوي او تر ۱۲ او ۱۵ فټو لوړې نه شي الوتلای د دغه معلوماتو په رڼا کښې د دې دپاره چې دي دغوماشو څخه ځان وساتي د غرما پر درخته ئې ځان ته کټ جوړ کړ او په تاریکه به د استراحت دپاره هلته ختي. دا رنګه به

ورځ ایلښې کښې یو نفر ګیاه پېژندونکي دغوماشو دلاسه نجات دپاره د برنډې پر بام ځای اچاوه او ماښام به د استراحت دپاره د زینې په واسطه هلته ختي.

لیکن دا چې په تودو منطقو کښې سړی د شپې پر لوړ ځای استراحت وکړي، د غوماشو د تکلیفه خلاصیږي. په نورو ځایو کښې نتیجه نه ورکوي.

تیر کال په دوبي یوه شپه د (مین) په ایالت کښې ښځې غوماشې فوق العاده ډېرې وې چې د بڼهارې دلاسه ئې زه په عذاب سوم وو د درختي ته وختم. دغو غوماشو زه لوړ پسې تعقیب کړم او نژدې وم چې ژوندی مې وخوري

بله ورځ دا واقعه ما خپل رفیق ته بیان کړه هغه وخندل او تشویق ئې کړم چې بله پلا تردغه و جګې درختي ته وخیژه. بداسې حال کښې چې ما لکه لیوني داسې ځان ګراوه جواب مې ورکړ چې په هیڅ صورت دغه ډول

نوې تجربې ته نه کوم او همدغه رنګه مې اطمینان ورکړ چې ددغې تجربې پرځای دا ښه ده چې په ښو

اوبو غسل وکړم، ورزش او حرکت ډېر ونه کړم الکولي مشروبات ونه خورم، ساه ونه کاږم او د هم زمزمه وکړم.

---

د م، ژباړه:

## د هنر په باب نظریات

هنر هغه وسیله ده چې د بشر د ژوند او سعادت لپاره په کار وړل کیږي.

د جامعې او فرد انساني وظیفې برسیره کوي د ترقۍ او پرمختګ لپاره لاره آواره وي او هنر هغه پانګه ده چې د کلماتو له لارې د بشر د ذهن او احساسات د ژوندي او ملي خدمت بنیان ګذاري کوي.

(تولستوی)

هنر هغه ذیاد او کوښښ دی چې د ښکلا د پیدا ښت د عالم د سمون او د بشر د واقعي احتوانه برسیره او برملا کوي. (شاله)

ښکلا هغه ده چې د هنر په ځانګړه کښې حقیقت ته ورته وي.

(هوګو)

محمدعظیم هوښمند :

# پوهه مېندې او ناپوهه مېندې چې صحي اقتصادي او اجتماعي شرایطو ته برابرې

## کولای شي چې سالم او پوه وګړي ټولنې ته وړاندې کړي

---

که چېرې موږ په نړۍ چار چاپېر داو ګرځو، خپلې سترګې پراخې پرانیزو، او دخپل فکر احساس مزې ټولنه ته متوجه کړو او دپیدایښت په هکله ژوره کتنه وکړو نوهله به دېو سپېڅلي او مقدس موجود سره آشنا شو، چې زموږ د پیدایښت او ژوند کولو سره ئې شلېدونکې اړیکې لري.

دامقدس موجودمور ده.

هو، مورده چې خپل ټول ژوند ئې زموږ د پیدایښت، روزنې او پالنې ته وقف کړی دی، او هر راز رېړو ته ئې غېږه اوړي. کلکه نیولی ده.

مورده چې قهرمانان، نوابغ او نړۍ ته چوپړونکي روزي، د کوچنیوالي څخه ماشومانو ته دژوندانه رازونه بیانوي او د ژوندانه دلوړو او ژورو سره ئې پوره پوره آشنا کوي هغوته په ژانګو کښې دقرباني، په ځان وېسا ځیر کېدلي، قهرماني، برابرۍ او پوه والي درسونه ورکوي.

دا پورتني صفتونه د یوې واقعي مور په څېره کښې میشت شوي دي.

موږ ټوله داهیله لرو چې مېندې باید صادق، فداکاره، رښتینې او پاکې ماشومان وروزي. ددې علمي اصل په اساس هیڅ بدیده په نړۍ کښې باید مطلقه او ځانګړې و نه ګڼل شي، بلکه باید هغه دهغې دارتباطونو او اړېکو سره او دهغه شاو خوا محیط دارتباط سره یوځای باید وڅېړل شي نوهله موږ یو صحیح نتیجې ته رسېدلای شو او ددې علت دهر معلول ځانته ځرګندولای شو، چې دا اصل په هر شي او هره بدیده کښې دتطبیق وړ دی نو که

ماشومان دټولنې مفید او ګټور غړي و نه ګرځي، او بالعکس دټولنې مضر مکروبو نه ځنې جوړ شي، آیا ناسې ددې علت مسؤله بولئ او یوازې مېندې بولئ آیا ناسې یوازې ګناهکاره مور بولئ؟

داپه کاره ده هغه مېندې چې رسېدلې دي، دماشومانو روزنې په فن پوهېږي او دماشومانو دجسمي تکامل په چارو کې چې ماهرې وي او اقتصادي ژوند ئې ښه وي نو کولای شي چې ښه اولاد چې دبشپړه شخصیت خاوند وي وټولنې ته وړاندې کړي.

خو موږ که خپلې ټولنې ته ځیر شو او هغې ته ژوره کتنه وکړو، دمېندو ژوندته تر دقیقې ځېړنې لاندې ونیسو دهغوی خواړه او غذا او صحي ژوند له نظره تېر کړو نو به دېو تریخ واقعیت سره مخامخ شو.

زموږ مېندې په تېره بیا هغوی چې په کلیو کښې ژوند کوي، دېر غمناکه او دخواشینۍ وړ ژوند لري. ژیاترو ته ئې دچه وړ وي

په مړه ګېډه نه رسېږي، کړې وړې او نرماچامه په ستوماته کوونکو کارو لګیا وي. له دغه امله دوی دا ولا دروزنې وخت نه لري.

ځینې د شته من نوکري کوي، ځینې بیا په نورو سختو کوونکو شاقه کارو اخته وي، ځکه دوی مجبورې دي چې هرڅه زېږي او

زحمت چې ورباندې راسي ومني گالي او قبول ئې کړي بیله دې څخه چې کوچني تربیه عکس العمل وښيي، او صرف دژوند باته کېدلو لپاره مجبورې دي چې چپ وا وسي او هر راز کار او زیاتې غاړه کښېږدي.

تاسو دخپل ځان سره سوچ وکړئ!

آیا داسې مېندې په داسې شرایطو کښې کولای شي چې سالم او باثمره ماشومان وټولنې ته وړاندې کړي؟ آیا سره ددې دومره بې شماره حقایقو بیاهم ټول مسؤلیت د دوی په غاړه

✻

*اوس يو حقيقت دا دی چې د دوی هيڅ په دې کښې ګناه نشته، بلکه اجتماعي خاصو شرايطو دوی دغسې په يوه محدود چوکاټ کې ساتلي دي .

دا ثابته ده چې اقتصاد د ټولنې اساس او هسته تشکيلوي ، او د ټولنې ټول شيان د دې اصل په شا وخوا ګرځي . د عامه ذهنيت په لوړولو، صحيحې ښوونې او روزنې په منځ ته راتلو، صحيحو تعليماتو په عملي کولو ، عامه ذهنيت په لوړولو کښې يو لوی او اساسي رول لوبوي .

که چېرې عمومي اقتصاد د يوې جامعې لوړ وي نو هلته هيڅکله د بدبختۍ ، ناپوهۍ او ناروغۍ تورې بلاوې ځای نشي موندلای .

ماشومان صحيحې روزنې ته اړتيا لري ، ماشومان شپه او ورځ کاملې او پوره پاملرنې ته اړ دي ماشومان وخندا او خوشحالۍ ته ضرورت لري ، څو هغوی خوشحاله او د خوشحاله روحيې خاوندان وروزل شي . مګر هغه مېندې چې شپه او ورځ ستومانه وي ، آيا کولای شي چې خپلو ماشومانو ته لږ ترلږه د زړه له اخلاصه يوه خوله خندا او تبسم وکړي ؟

رښتيا چې يوازې او يوازې اقتصادي ، او اجتماعي برابر شرايط کولای شي چې ښه او صالح ماشومان د ټولنې ته وړاندې کړي . هسې ماشومان چې د ټولنې واقعي او رښتين خدمتګاره وي .

نو راسئ چې د سالمو، صالحو صادقو ، خدمتګارو او وفادارو ماشومانو د روزنې په هيله، د دوی د متکامل شخصيت د منځ ته راتلو په هيله، د ټولنې د واقعي خدمتګارانو د روزلو په هيله ، د يو مترقي او پرمختللي افغانستان د جوړيدو په هيله او په پای کښې د ميندو د حمايې او د صحي ، اقتصادي او اجتماعي مساعدو شرايطو د برابرولو په هيله ټول لاسونه سره ورکړو .

د خارجي منابعو څخه: د الهام وال ژباړه :

# تر غږ چټکې الوتکې

د برتانيې او فرانسې دولتونو د نهو کلونو راهيسې په دې خوا د ۲ر۵ ميليارد ډالرو په لګښت د (کنکورد) په نامه د نړۍ د مسافر وړونکو لويو الوتکو د جوړولو په لټه کښې دي .

د الوتنې او د ښارونو ، کليو او کوڅو د اوسيدونکو د هوسايي موضوع د دغې الوتکې د جوړولو په کار کښې ډېر اهميت لري .

حقيقت دا دی چې تر غږ پورته د حمل و نقل الوتکه د راتلونکي هوائي الوتکو د جوړولو د صنعت يو لنډ موج او يا د نفوسو ډک صنعتي ښارونو د راتلونکي امنيت لپاره يو تهديد دی .

آيا لازم دي چې د جوړيدو او بشپړيدو په مرحله کښې بېړه وشي يا دا چې سر له اوسه د دغې د جوړولو په کار کښې بايد ځنډ وشي ؟

نه کاله کېږي چې په اروپا کښې د برتانيې او فرانسې د دولتو له خوا دوه ميليارد او پنځه سوه مليون ډالرو په اندازه تخصيص ورکړ شوی دی ترڅو چې د ننني عصر د الوتکو د جوړولو د صنعت لويه پديده د (کنکورد) په نامه د نړۍ بازار ته وړاندې شي او د دغې پديدې څخه د هيوادونو او کوچنيو ښارونو د ژوندي کولو په لار کښې استفاده وشي .

د دې رسيدلي راپور له مخې د دغې الوتکې د جوړيدلو کار بشپړ شوی او د دغې د قدرت په هکله مقدماتي آزمويښتې شروع او د بريالیتوب سره مخامخ شويدي .

د امريکا په متحده ايالاتو کښې هم د (اس، اس، ټي) په نامه د نامتو الوتکې د جوړولو مقدماتي کار چې په يو ساعت کښې به ۱۸۰۰ ميله لار وهي پای ته رسيدلی ، خو د امريکې کانګرس د دغه ډول الوتکو د جوړولو او د مالي اعتباراتو د تامين په هکله د دولت څخه معلومات غوښتي او معلومه شوې ده چې د کانګرس په اختيار کې به کښېښودل شي .

که چېرې خبرې اترې څنګه چې شروع شوې همدا رنګه دوام پيدا کړي نو بيا به د نيويارک يو تن ځوان صنعت ګر ته ورسيږي چې څو لوړ اطلاعات د کانګرس په اختيار کې کښېږدي .

دا طرح د يوه شپږ ويشت کلن ځوان ديموکرات له خوا د مانهاتان له ناحيې څخه ترتيب شوې او د دې طرحې څخه غرض دا دی چې د امريکې په لويو هوائي ډګرونو کښې د الوتنې سلامتي تامين کړي او د ډېرو لويو او تر غږ چټکې الوتکو د احتمالي خطرونو څخه مخنيوی وکړي .

د همدغې طرحې له مخې د نويو الوتکو جوړونکي کارخانې بايد په لومړۍ مرحله کښې د الوتنې سلامتۍ او د خلکو هوسايي ته نظر کښې ونيسي وروسته بيا د دغسې الوتکو په توليد او تهيه اقدام وکړي .

رښتيا خبره دا ده چې (جومبو جټ) ډوله ۷۴۷ بوينګ الوتکې ځانونه د الوتنې د سلامتۍ له مقرراتو او د ښارونو د هوسايي سره هم آهنګ کړي او کوچنۍ الوتکې هم ورو ورو ځانونه د دغو مقرراتو سره برابروي ترڅو چې په قطعي ډول د الوتکو د جوړولو د صنعت د پرمختګ سره يو ځای د ښارونو د اوسيدونکو هوسايي او آرامتيا هم تامين شي .

د ریډرز ډایجسټ څخه: د غ، ایوبي ژباړه:

# څه ډول د ناآرامیو سره مبارزه وکړو؟!

هر چا به ژوند کښې خپل یو ګران دوست ولاسه ورکړی دی خو اېږ کسان لیدل کېږي چې د امریکې متحده ایالاتو نو د تلویزیون د پروګرامونو د اجرا کوونکو مسؤل او لیکوال «ماکس ویلي» په څېر د ژړا توقعونو او خواشینیو سره مخامخ شوي دي.

ماکس ویلي په ۱۹۳۶ کال واده وکړ، ده دوې پېغلې لوڼې درلودې یو ورځ دده ۲۱ کلنه لور د «جانیس» ده ته نودې پېښه وه بله کوچنۍ کښې د نیویارک سیټي په اپارتمان کښې په ډېره ناوړه توګه ووژل شوه، په ۱۹۶۸ کال یې ماینه د سرطان ناروغۍ د پښو واچوله، او تر دې پېښې خو میاشتي وروسته یې بله لور د ذات الریه د ناروغۍ له کبله مړه شوه.

په دغه ځای کښې ماکس ویلي لیکي چې د دومره مصیبتونو او ناآرامیو سره یې څه ډول وکړای شو د اوسني ژوند سره توافق وکړي:

«هر کله چې د ژوند د سیورې کېدونه نو دې وي خوښه وکړې او پر هغه بېرته پورته وخېږه» په بل عبارت ژوند باید دوام ومومي. د روحیاتي او رواني

پلوه په دغسې وختونو کښې تاسو بېرته د ژوند د دوام څخه بله چاره نه لرئ، اوس که څه هم په ډېر دردناک موقعیت کښې اوسي د اجتماعي پلوه ستاسو مسؤلیت

زیات دی، د احتیاط په ځای چې تاسو د ژوند کوونکو د پاره هیڅ دلیل ونه لرئ خو بیا هم دې ته اړتیا ده چې د خپل شاوخوا اوسیدونکو سره معاشرت وکړئ، اوس که

پر دغه رابطه هر نوم ولري هغسې تې دبولي مینه، همدردي، جبر او پاتشویش په پای کښې تاسو د نورو د پیوند رشته نښې برګي کولای.

عادي ژوند ته بېرته راګرزېدل یعني دغمو، د اندېښو څخه ځان خلاصول د بدبختیو سره د مقابلې د پاره یو ساده چاره ده، لیکن که تاسې هر څو نه غم

وکړئ ځان ته ډېر زیان رسوي، او که دغه حالت دوام وکړي ستاسو سلامتي پېښې د منځه وړي او تاسو د پښو اچوي.

هر کله چې انسان د یو سختې اندېښنې سره مخامخ شي په هغه بحراني ګړۍ کښې یو کوچنی کار نشي کولای او کوم وخت چې دغسې بدبختي انسان ته مخ کوي، هغه هیڅکله تصور نه کوي چې زمانه څه چاره کوونکې ده، نو په دغسې حالاتو کښې بهترینه لار داده

چې بوخت له شي، او بېرته د ځان په ناآرامۍ د بل چا د غم سره حساسیت څرګند نه کړي، خو که غواړئ څه نور هم ناآرامي لکه ناروغي، د کورني د یوه غړي مړینه، د

وظیفې څخه برطرفي او د اسې نورو وروسته پرخپلو اعصابو تسلط ومومي باید په یاد ولرئ چې په ژوند کښې مثبتې جنبې هم شته او تاسو باید د هغو په باب هم فکر

وکړئ، ستاسو ناآرامي که هر څومره زیاته وي بیا هم تاسو په هغه غم کښې یواځې نه یاست دي او تاسو په یو شخص نه یاست چې د دا ډول یو غم سره مخامخ شوی

یاست، د احتیاط زیات کسان په دغه ګړۍ په دغه ناآرامۍ کښې ستاسو سره شریک او ملګري دي.

د هوا ني لور ترمېړني یو ورځ وروسته د لندن څخه تلګرافي خبر راورسید چې زما یو صمیمي دوست مړ شوی او ماینې یې د اخخه غوښتي وه چې د هغه د جنازې او ښخولو په مراسمو کښې ګډون وکړم، تر یو څو ګړیو

پوري می د تلګراف کلمې په ذهن کښې نشوای هضمولای خو هر کله چې هغه ورځ تېر شوه د هغې ښځې د ناآرامیو

تصور او دا چې په اوسني حال کښې څه ډول کوونې ګرفتاره هغې ته پېښې وي نه دې ته واداره کړم چې

د دې تلګراف ته مثبت ځواب ور کړم، په داسې حال کښې چې په واقعې توګه مې باور نه شوای کولای چې زه به په دغو دوو ورځو کښې د دې وس ولرم چې د خپلو صميمي دوستانو د ښځو او په مراسمو کښې ګډون وکړم.

اوس چې تير شوي وختونه رایادوم د دغه خبر د را رسیدلو ارزښت ته ملتفت کېږم، په هغه وخت کښې

چې د زیاتو مصیبتونو سره مخامخ یاست د نورو بدبختۍ د یادولو تربوې اندازې پورې ستاسو غم کموي.

البته ستاسو درد به بیخي د منځه ولاړ نه شي خو ځان د نورو په غمونو کښې شریك ګڼل د دې باعث کېږي چې ستاسو د شخصي مصیبت غم دې ستاسو له سره یو څه سپك شي.

د دغو ټولو مصیبتونو نه خو میاشتې وروسته ما ته مسلمه شوه چې هر څومره ځان د نورو په مصیبتونو او غمونو کښې شریك وګڼو، موږ ته ایې موقع پیدا کېږي

چې پخپلو غمونو کښې ډوب شو، اوس زه یو ځل بیا ځان د نویو کسانو سره مخامخ بولم، زما او سنۍ ژوند بیرته د یو داسې ګړي څخه شروع شو چې ما تیرو شویو ترخو

خاطرو او نا امیدیو ته شا ور وګرځوله او د غم موجونه د منځه ولاړل.

په تیر وخت کښې زموږ ژوند داسې شو او حرارت درلود چې زه ئې د هغو خوږو خاطرو او موفقیتونو په موج کښې باقي پاته یم چې لونومی په ژوند کښې هغه

ګټلي ؤ زما مطلب هغه موفقیتونه، درسې پرمختګونه او داسې نور دي چې د هغو خاطرې تر اوسه زما په ذهن کښې شته، زما سره د غه خاطرې اوس هم مرسته کوي.

زما پوښتنه د هغو کسانو نه چې د خپلو ګرانو دوستانو سره یو ځای د ژوند کولو څخه خوند اخلی دادی چې په اوس حال کښې ئې څه ډول افکارو په ذهن

کښې ځای نیولی دی داځکه آرامي خاطرې او د ژوند عادي او ښې پیښې دي چې په راتلونکی وخت کښې د انسان د ژوند هستي تشکیلوي، په اوسنی حال کښې

یوازې دغه تاسو یاست چې باید د ژوند ځای ورووړو د ښو خاطرو څخه ډك کړي.

د غم او مصیبت په وخت کښې هغه ټولی خاطرې

دیادولو باسی چې ستاسو غم تازه کوي او خپل محیط بدل کړي او یو بل لوري ته ولاړ شي.

په هغه وخت کښې چې زه په ژوند کښې یوازې پاتې شوم لوڼې او مامنې مې خاوروته وسپارل، په

نیویارك سیټي کښې مو خپل اپارتمان پرېښود او د نیویارك په ۸۰ میلی کښې بل ځای ته ولاړم او اوس د

«هری تیچ» په سیمه کښې په لیکوالی لګیا یم او تصور

کوم چې د ۳۰ کالو تلاښ نه وروسته د ښادي ژوند څخه لیرې په یوه آرامه سیمه کښې اوسیدل، د نویو مسایلو

نویو شیانو، نویو ونو او نویو منظرو سره مخامخ کیدل زما د غمګین زړه څخه د غمونو په لیرې کولو کښې څومره اغیزه لری.

اوس هر سهار وختي د خوب ه را کښېنم، د شپې وختي بیدېږم، او سنې کوټې د سیند پرغاړه دې هر سهار د

کښتیو اناتو په آواز او د کښتیو په حرکت د خوب ه را کښېنم

او یو څو دقیقې ئې نظاره کوم او خوند ځنې اخلم چې څه ډول یو د غه نوې ورځ په کار شروع کوي.

زما په عقیده ځان مشغول ساتل، پر له پسې کار کول او د رفیقانو سره معاشرت د لویو غمونو او مصیبتونو بار د انسان له وجود څخه سپکوي.

باید کوښښ وکړو هره ورځ د دوستۍ او رفاقت ځاله پراخه کړو په پخوانی روم کښې چې به یو لوی

شخصیت ته سخت غم او مصیبت ورسید، صبر او تحمل ئې کاوه او انزوا ئې غوره کوله، خو اوس هر کله چې

یوه ډیره نیکمرغی امریکائی کورنی د ژوند ټولی آرامی دلاسه ورکړي او د نیکمرغی پایه ئې ونړیږي

بیرته د نوي ژوند اساس ږدي او نوی ژوند شروع کوي.

باید ورځنی کوچنی مسایل هیر کړو داځکه هغه ورځ تیره شوه بیا نه راګرځي او باید په نوی

ورځ کښې دا فکر وکړو چې د تیری ورځې بدې پیښې دا څخه تکرار نشي او د اعمالو په دفتر کښې ښه خاطرې ثبت کړو.

د امریکائی متنا بعو څخه:                                        د پیغلی فهیمې ژباړه:

# د ساري امراضو مخنیوی

ساري امراض عبارت د هغو ناروغیو څخه دي چې د مرضي عامل یا توکسین په واسطه د یوه ناروغ حیوان یا انسان څخه د یوه سالم شخص ته په مستقیم او غیر مستقیمه توګه سرایت کوي دي ناروغیو نن ورځ جهاني کړ کیچني رابیدا کړیدي ځکه چې د ټولو ناروغیو تقریباً (۸۰) فیصده تشکیلوي او خصوصاً په

مخ په انکشافه هیوادو کي چې سواد ډیر کم دي او خلک د صحي چوپړ سره نا اشنادي یو ساري ناروغي په ډیره آساني سره په زرو خلک اخته کولای سي د دې ناروغیو مخنیوی د وقایوي احساساتو د عملي کولو په وسیله ډیر ښه کیدلای شي یو لار د وقایوي

تدابیرو څخه ضدعفوني کول دي (ضدعفوني عبارت د هغي عملیې څخه ده چې د ناروغي عامل د مخه تر دې چې ناروغي منځ ته راوړي د فزیکي او کیمیاوي عملیاتو په واسطه د منځه وړل دي) او دا عملیه په لاندې ډول سره کیدای شي.

## ۱- فزیکي عملیات:

الف: په طبیعي توګه د لمر د وړانګو په واسطه.
ب: په غیر طبیعي توګه، سونګ، تود هوا، بخار ایشول.

## ۲- د کیمیاوي وسائلو په ذریعه:

الف: د کلکو موادو په وسیله.
ب: اوبه مواد.
ج: غاز.

## اول- د فزیکي عملیاتو طبیعي ډول:

د لمر د وړانګو په واسطه د مرضي موادو د چول یو نوعه ضد عفوني ده چې البته خفیفه ضد عفوني باید ورته وو ایو ځکه چې د تیتانوس او انتر کس د میکروبو سپوروته تر ډیره یوري د لمر ته مقاومت کولای سي

خو ځینې مرضي کو کسونه او باسیلونه د وچیدو په واسطه په آساني سره د منځه ځي د دې لپاره چې دا وسیله ښه ترا مؤثره سي باید نا پاکه سامان او اسباب د ورځي د دې

ساعته لمر ته کیښوول شي چې ښه وخت یې د ۱۱ بجو څخه تر ۲ بجو پوري د ما پښین دې او تر دوو ورځو پوري دا عمل باید دوام و کي.

## ب- غیر طبیعي توګه یا سونګ:

بهتر یقه طریقه د ضد عفوني هم د غه سونګ دي یعني نا پاکه زړې توشکې، زړې کمبلې، بالښتان کالي او نور چې بې ارزښته وي باید وسوځول شي.
بلغم، نور او نور افرازات عموماً دا ډې د بوډې او ګاسلیتو په وسیله سوځل کیږي.

فلزي شیان لکه چپر کټ او هم د خونې دیوالونه احاطه د اور د لمبې په واسطه سوځي
تود ه هوا، زیاتره مکر و بونه چې ډیر وخت حرارت ته غرمه شي د ما بین څخه ځي چې دا طریقه د جراحي سامانونه، ښیښې سامانو لپاره ډیره ښه طریقه ده چې

په (۱۶۰) درجې د سانتي ګرید کي سامانونه دوه ساعته پړدي.
**ایشول:** دا طریقه هم ډیره مؤثره ده یکتریا وي او د هغو سپورونه په نیم ساعت کښې د منځه وړي دا طریقه د نا پاکو لباسو، دوي کښانو، د مخ د سملو او د بخلي

د سامانو لپاره یکاره ده البته وړین کالي ایشیدلی او په خرابوي.
**بخار:** دا طریقه عموماً تر ټاکلي فشار لاندې په دوه ډوله صورت مومي.

۱- بخار تر عادي فشار لاندې په (۲۱۲) درجې د

فارن هایت ۲: بخار چې د ینځو څخه تر ینځه و یشت پونډو فشار لاندې وي، دا قسم ټول مکر و بونه ډیر ژر د وژني ځکه چې د بخار د نفوذ قوه ډیره وي او زیاتره لباسونه، بستري د ضد عفوني لپاره استعمالیږي.
د بخار ضد عفوني په خپلو سامانو کښې خرڅیږي.
دوهم- کیمیاوي وسائل.
۱- مرکزي بر کلو رایډ- یوه ارزانه ضد عفوني ماده ده چې د ۱ بر ۱۰۰۰ او ۱ بر ۵۰۰۰ ګاټه والي استعمالیږي

صرف محدودیت ئې دا دی چې پر فلزاتو تأثیر اچوي، سخت زهري دي او د البو مینې موادو په موجودیت کښې بې تأثیره دي یعنې د نو، بلغم په مقابل کښې تأثیر نه لري دا طریقه د اطاق د

فرش، دیوال، لوازم، او چرمي سامانو لپاره یکار یږي.

۲- پتاشیم پرمنګنات :

یو ځیره خفیفه ضد عفوني ماده ده چې عموماً د او بو، سبزي

جاتو او میوو د پاره ۵ پر ملیون غلظت استعمالیدای شي، د ځانو لپاره باید داسې استعمال شي چې دا پو د رنګ ۲۴ ساعته ګلابي وي.

## بلیچینګ پوډر :

دا ماده د پوډر یا پنځه فیصده محلول په شکل استعمالیږي غا ئطه ماده، بیت الخلا، دیوالونه د چینې او پخلي سامانو لپاره عموماً د لوی تېږي، کولرا په وخت

کښې استعمالیږي د چښلو او په (ټانکونه، څاهان، چینې او نورو دي یا پنځه پرمیلیون برخه او بو کښې استعمالیږي په کود کې یو ګرام پنځوس ګیلنه او به ضد عفوني کولای شي یوازې ټکران نسو

کولای چې د دې محلول په واسطه ضد عفوني کو ځکه خرابوي ئې.

بې او بو اهاك یا کلسیم او کسیډ :

وختې چې او به و د سره یو ځای سي کلسیم هایدرو او کسایډ ورکوي چې عموماً د پنځو څخه ترشلو فیصدو محلول په شکل غا ئطه مواد، بیت الخلاوې، جرونه، د خوټي دیوالونه، طبیلې به ضد

عفوني کوي.

## پارافورم :

د ګولۍ په شکل اخرځیږي او د مخصوصو څراغو په واسطه چې الفوړمات نومیږي د فورم الدیهاید غاز څخه حاصلوي چې یوه ګولۍ ئې یو ګرام

پارافورم الدیهاید ورکوي او شل ګولۍ ئې د یوه اطاق د ضد عفوني کولو لپاره چې ولس مکعب ظرفیت لري کفایت کوي

فورم الدیهاید د بخار یو قوي ضد عفوني ماده ده چې د بلیچینګ پوډر په نسبت

بهتري لري ځکه چې قابلیت د تخریب لکه نورو ټولو ماده ګانو لري دا ماده زیاتره په عفو اطاقو کښې چې د کوټې مریضان پکښې وي استعمالوي.

## کارېسلفیت یا نیل طوطیا :

عموماً د الجي د وژلو لپاره استعمالیږي ترتیب د استعمال ئې یو یا دوې برخې پر ملیون د آب بازي د حوض او ټانکو لپاره استعمالیږي په پورتني

غلظت ماهیان نه متضرر کوي او په غلظت دیو پر ملیون د لکو د لوی تېږي باسیل په ۲۴ ساعتو کښې وژني.

## د صابون او به :

عموماً د پوست، جامو، لوښې او نورو د پریولو لپاره استعمالیږي چې په میخانیکي ډول یو زیات شمیر مکروبونه لیسته کوي دا ماده د خپل قلویت په

نسبت ضد عفوني تأثیر هم لري یو اځې ستیفلو کوك، ګونو کوك، بونوموك وژلای شي مګر پر نورو مکروبو چندانې اثر نلري.

همدارنګه د سکرو د قیر مشتقات د فینول او کریزول د موجودیت په نسبت ضد عفوني تأثیر لري چې په تجارتي بازار کښې د فینول، فینل ایزال، سلین، هیکول او لیزل په نامه خرځیږي د دې

موادو صفت دا دی چې د عفونې مالیبو سره چې معدنې او نمکې مواد لري یو ثابت مستحلب جوړوي

دوهم صفت ئې دا دی چې البو مینې موادو ته تخریب نه ورکوي نو په دې اساس د غائطه موادو لپاره استعمالیدای شي او پر منسوجاتو

چوبي لوازمو یا فلزي شیانو باندې په عمومه غلظت کښې تخریبي اثر نه لري صرف نقص ئې دا دی چې په ډیر وخت کښې مرضي عوامل د مینځه وړي.

وقایوي اساسات غیر د ضد عفوني موادو د استعمال څخه ډیر دي چې هره برخه ئې یو بحث تشکیلوي البته په ورو ستیو مضمونو کښې په تفصیل ورکړه شي یو شې چې دلته باید ذکر شي دا دی چې یوه ناروغي هیڅ وخت په

یوه آن کې سري ته نه سي ور دې لپاره چې د مختلفو ناروغیو مکروبونه خپل تأثیر په سالم عضویت کښې وښندي یو وخت غوا ړي چې دا وخت

د دوو عاملو سره اړه لري.

۱- طبیعت د شخص، اندازه د مکروب، مرضي خاصیت د مکروب.

۲- اندازه د معافیت د سالم شخص.

نو په دې نسبت د یوې ناروغي

تأثیر څنګه لو ټه څخه د بلې ناروغۍ سره توپیر لري په دې نسبت د ډیوده او لنډه څخه ما بېنې برخه منل شوې ده. په مځینو ناروغیو

(نور په ۴۰ مخ کښې)

(نور په ۴۰ مخ کښې)

(د ۱۰ مخ پاته)

## زموږ د خپلواکۍ ...

ملي پوهاوی، اجتماعي خدمت، وطندوستي کار او فعالیت په برکت وساتو.

او س چې زموږ هېواد د انکشاف پر لور ګامونه اخلي او په دغه حال کښې چې موږ ستر مشکلات په مخ کښې لرو او په تېره بیا د دوو وروستیو کلونو وچکالۍ زموږ خلک پریشانه او په تنګ کړي دي موږ ته لازمه ده چې

یو او بل ته د مرستې او مهربانۍ لاس ونه ورکړو ټول په دغه لار کښې زیار وباسو او د خپل هېواد د اوسني درېځ ملاتړ وکړو.

ژوندی دې وي زموږ محبوب پاچا. مترقي دې وي زموږ ګران هېواد

(ایوبي)

(د ۱۷ مخ پاته)

## ده نور

خوا ږدو چې د دغه طبیعي ځنګلونه چې زموږ د هېواد د دولو ملي پانګه ګڼل کېږي د افرادي کسانو د ناوړې استفادې څخه وساتي ځکه اوس په دغه سیمه کښې

عمومي سړ ک تېر سوی دی نو د موټر ارونکو او نورو له خوا د دغه طبیعي ځنګلو د پرېکېدو او لوټېدو خطر شته.

(پای)

(د ۱۰۵ مخ پاته)

## دین او اجتماع ...

یوازې اسلام ته ویلی شو، نه بل قانون ته.

هو: په بل هیڅ یو قانون کې دا نشته چې که چېرې د یوې

کورنۍ غړي د فقر، بېوزلۍ او داسې نورو ترخو پېښو په نسبت په کړاوو اخته شي او د دوی پلایان ګاونډیان چې هیڅ مرسته

ورسره ونه کړي او همدا غسې یې د خوارې پر میدان پرېږدي، یوې محکمې ته وغوښتل شي او مجازات دې شي اسلام خپلو پیروانو ته

توصیه کوي چې له خوارانو او بېوزلو کسانو سره مرسته او د هغوی لاس نیوی وکړي حتی د اسلام ستر پیغمبر [ص] یې عاطفي

پیروانو ته داسې فرمایي: (هغه څوک چې خپله په مړه خېټه خوړا ک کوي او ګاونډیان یې په ځنګ کښې وږي وي له سره د کامل

ایمان څښتن نه شي کېدای) پرته له اسلام نه په بل یو قانون کې خبرې ته ځای نه دی ورکړ شوی چې که چېرې یو څوک د خپل دوست

یا ګاونډي او یا د کلي او کور د ناروغه پوښتنه ونه کړي او همدردي ورسره ښکاره نه کړي نو مجازات دې شي خو اسلام د ناروغ پوښتنه ټول د انساني او اسلامي حقوقو څخه ګڼي او مسلمان ته امر کوي چې د بل مسلمان ناروغ پوښتنې ته ورشي او همدردي ورسره څرګنده کړي.

له اسلام نه پرته په بل قانون کښې دا نشته چې د دروغجن، کینه نا ک، متکبر، ریا کار، چغل ګر، عبث ویونکي او تنبل ته دې جزا ورکړه شي خو اسلام ددغو ټولو ناوړو اعمالو لپاره بېلې بېلې جزاوې ټاکلې چې

کوونکي یې په هغو باندې محکوم کېږي.

پرته له اسلام نه په بل هیڅ قانون کښې د محتکر سود خوړ

لپاره جزا نده تعین شوې خو اسلام دغو د وړو عملو ته په بده

ستر ګه ګوري او ددغو د وړو عملونو کوونکو ته له یوې خوا نه

په دنیا کښې د ترخه ژوندانه وعید کوي او له بل پلوه خبر ورکوي چې د آخرت په ورځ کې به د پا ک خدای د قهر او غضب وړ

وګرځي.

پرته له اسلام نه په بل یو قانون کښې دا نشته چې یو سړی په خپل

مال کښې له اسراف کولو نه منع کړي او مسرف ته مجازات وټاکي خو اسلام مسرف کوونکو ته بد وایي

او مسلمان ته امر کوي تر څو له اسرافه څخه ځان وژغوري همدغه شان نور داسې ډېر مثالونه

شته چې پرته له اسلام نه په نورو قوانینو کې ورته ځای نه دی ورکړې

شوی او په اسلام کښې د اجتماعي نظم لپاره پوره مراعات شوې دي.

(پای)

د الدراسات الادبیه له عربی مجلې څخه:

ژباړونکی «نجیب»:

# د ژبو تاریخ او تطور

د هندواروپایي ژبو اطلاق د لغاتو پر هغو مجموعو باندې کېږي چې له هند څخه تر امریکا پورې خپرې شوي دي او د امریکا تر ټولو لویې برخې او ... په وروستي هڅو د استرالیا تر ټاپوګانو او د افریقې تر ټاپوګانو هم رسیدلي دي. دغه ډله خپله یوه لوی کورنۍ ده او ... تاریخي اهمیت له وجهې څخه ډېرې قدرزیاتې دي.

له هندواروپايي ژبې څخه دغه ژبې زېږېدلي دي، تالی هېڅ او نور ملحقات یې:

هندو، ایرانی، ارمنی، بالتی سلافی، البانی، بندقی، ایلیری یونانی، ترکی، فرنګی، کلتی، لاتینی تخاری (اګنسی، کوچی) جرمنی.

که څه هم دغه پورتنی ژبې بیل بیل فروعات لري لکن ګمان کېږي چې اصل یې هندواروپايي ژبه دی او ټولې په لومړي سر کې له دغې ژبې څخه زېږېدلي دي

د دغې ژبې شعب په روسیه، منځنۍ آسیا، او د قزوین بحر پر څنډو باندې او سیمه د دوی د لغاتو له مقاومت څخه تقریباً د یوه واحد اصل ګومان کېږي.

د هندوایرانی ژبه چې اطلاق یې پر آریایی ژبه باندې کېږي د هند و ایرانیانو او افغانیانو د ډیکه ګانو مشترکه ژبه وه چې یوه یې سنسکرت او ایرانی ژبه لومړنی ملحقې ژبې ګڼل کېږي. ایرانی ژبه چې د مېلاد څخه پخوا یې پر ... ساحې پر وګړو یې احتوا درلوده په جنوب کې د خلیج فارس، بحر عمان، په مغرب کې د بین النهرین او ارمنیا په شمال کې د قفقاز او منځنۍ آسیا صحراوې او په مشرق کې د افغانستان او د پامیر د شاوخوا ګړې په ګړېدل او اوس یې هم په منسوبو ژبو خلک ګړېږي او په یو وخت کې د دې ژبو ویونکو هومره قدرت پیدا کړ چې خپله د ایجې ژبې یې په شمالی او شرقی مغولستان کې خپرې کړې د ایرانی ژبې لهجه د تطور درې مرحلې لري لومړی د قدیمې ایرانی ژبې لغات دوهم د منځنۍ ایرانی ژبې لغات دریم د نوې ایرانی ژبې لغات.

(د ۲۸مخ پاته)

## د ساری امراضو ...

کې لکه انفلوانزا ، تسمم غذا یې د ادوره لنډه یعنې په څو ورځو یا ساعتو کې دوغ سړی په ناروغی اخته کېږي تورهغاړه او شری کې د ادوره د یوې هفتې څخه تر دوو هفتو پورې ده. په جذام ایکتیځو مایکوز دلیونی سپی په مرض کې څو هفتې تر څو میاشتو پورې د ادوره دوام کوي نو کله چې یو سړی د ساري ناروغه سره په تماس کې سی نظر و ذکر شوي دورې ته تر ډیره پورې باید د خطر اندېښنه وکی او د لا زموې چه د قایوي وسایلو څخه استفاده وکی.

## د قدیمې ایرانی ژبې لغات:

فقط مشتمل پر دغه قدیمه فارسی او اوستایی وه.

۱- قدیمه فارسی ژبه چې د هخامنشیانو په ډبر لیکنو کې باقی او په مسماری لیک سره لیکل شوی ده.

۲- اوستایی ژبه چې د ایران په شرقی نواحیو کې متد او له وه د زردشتیانو په مقدس کتاب اوستا کې ضبط ده تاریخ یې د مخه تر میلاد و شپږم قرن ته رسېږي د اژبه د اوستا په مخصوص لیک لیکل شوی ده اوستا په یوه زمانه کې نه دی لیکل شوی بلکه ژبې او کتاب مختلفی زمانی په برخه کې نیولی دي د قدیمو ایرانی ژبو اثرات د او سنیو ژبو په لغاتو کې په ښکاره ډول لیدل کېږي او په قطعی ډول سره له منځه نه دي تللی.

## مادی ژبه:

د غربی او وسطی ایران د اوسیدونکو ژبه وه چې د مادي پاچهانو په کورنۍ پورې یې تعلق درلودی د ماد قوم ذکر په ۸۳۵م کې د اغلی او د هخامنشیانو په ډبرینو یعنې حجریه کتیبو کې یې د ژبې د څینو عبارتو یو لګی لیدل شوی دي د سغدی، خوارزمی سکایی، بارتی ژبو آثار په وسطی زمانه کې پیدا شوی او د ایران په شرقی برخو پورې تعلق لری

«نور بیا»

عبدالقدوس «صاحبزاده»: د خپلواکۍ د ۵۴ کلیزې له کبله:

# شکر چې افغان یم استقلال لرمه

شکر دی خدایه چې آزاد په جهان یمه زه — په آزادۍ کښې تودیالی قوم د افغان یمه زه
په افغانۍ کښې بیا سپیڅلی مسلمان یمه زه — مسلمانۍ کښې بیا ولاړ په ټینګ ایمان یمه زه
ایمان کښې غوره د جهان یم دا کمال لرمه
شکر دی، شکر چې افغان یم استقلال لرمه

چې خپلواکي نه وي داژوندا و سروماڵ به څه کم — ښته اوهستی او دارائي مال و منال به څه کم
چې زه اسیر یم معشوقو ښایسته جمال به څه کم — چې زنګیدلو واکمې نه وي زلفو خال به څه کم
که زه غلام بند د زندان یم بدحال لرمه
شکر دی، شکر چې افغان یم استقلال لرمه

که مې نیولی ؤ بابا تودی توپك نه قهر — یا ئې ورکړی ګوزارونه ؤ دښمن په ځیګر
خو بیائې تودی او میړانې نه عالم شو خبر — دا آزاد ژوند چې کوو دې د دوی د تودې ثمر
زه مستقل او مسلمان یم رزق حلال لرمه
شکر دی، شکر چې افغان یم استقلال لرمه

که د بوې خوا نه آزاد ملی اختر جوړه وم — د شهیدانو په ارواح دغه دفتر جوړه وم
ګلو ګیڼه زه د دغو قبر پسه سر جوړه وم — سره بیرغونه ئې په قبر پسه هنر جوړه وم
د آزادۍ په لار روان یم روح خوشحال لرمه
شکر دی، شکر چې افغان یم استقلال لرمه

د بلې خوانه وایم دا آزادي لاډه نه شي — د آزادۍ لوړه ماڼۍ زما ویجاړه نه شي
هم سروماڵ زما باییلی پکښې دواړه نه شي — د غلامۍ بده کړۍ راته پسه غاړه نه شي
باید تیار جنګ ته هر آن یم توره او ډال لرمه
شکر دی، شکر چې افغان یم استقلال لرمه

کومه تلین د شهیدانو پکښې وایمه زه — ای لویه خدایه بندګانو نه د ستا یمه زه
په سر سرتور درته ولاړ او په دعا یمه زه — په دې دعا کښې مې خواهان د مدعا یمه زه
زه د خاوند د تل ایمان یم دا سوال لرمه
شکر دی، شکر چې افغان یم استقلال لرمه

د شهیدانو پسه ارواح دې سلامونه زما — بس له سلامه پسې دادی پیغامونه زما
په پیغامونو کښې مې دادی کلامونه زما — چې د وی ایستلی دی ذړونه ارمانونه زما
اوس ترقی په لور روان یم جلال لرمه
شکر دی، شکر چې افغان یم استقلال لرمه

خاونده خدایه ظاهرشاه ته عمر ډیر ورکې — ورته صحت او سلامت په زور و زیر ورکې
دده اردو ته شجاعت زمری په څیر ورکې — افغانستان ته هر څه ډیر د حد نه تیر ورکې
(صاحبزاده) نه پریشان یم نه ملال لرمه
شکر دی، شکر چې افغان یم استقلال لرمه



دخپلواکۍ څلی